



# زاهد
# پښتو - پښتو
# سيند






د افغانستان د علومو اکاډيمي
د پښتو څېړنو نړيوال مرکز

عبدالقيوم زاهد مشواني



څېړندوی دانش څېړندويه ټولنه

# غ

**غ** (ğayn) نـر.م. د پښتـو الفبې دېرشـم توری دی. د ابجد په حساب ۱۰۰۰ حسابېږي.

**غاب** (ğab) نر.م. (ج. غـابونه) تینګـری، تـالی، نالبکی، قاب.

**غابونی** (ğābūṇay) نر.م. ګنډنې غوندې يو ډول ترخه وابنه دي چې شنه (آبي) ګلان کوي.

**غاتر** (ğātə́r) نر.م. ج. غاتره، کچره، قچر، قاطر.

**غاټول** (ğāṭōl) نر.م. ج. و ګ. ريدی.

**غاټول وزمـه** (ğaṭōlwazmá) ښځ.م. غـاټـول غونې، د غاټول په رنګ، لاله رنګی.

**غار** (ğār) نر.م. (ج. غـارونه) ۱) سـوره، سـوری؛ ۲) سمڅ، ګاره؛ ۳) غټې کانې.

**غارمه** (ğārmá) نر.م. د لمر تاو، د لمر ګرمي.

**غارندونه** (ğārandūna) ښـځ.م. غـاروزينـه، يـو ډول عـبه سارایي شرمښکې ده.

**غاروزينه** (ğārozína) ښځ. م. و ګ. غارندونه.

**غاړی** (ğāṛáy) ص. نر. م. ۱) ډېر خوړی، ګـېډور، خـېټـور؛ ۲) بـد ژبی؛ ۳) نـر.م. په غـاړ کې استوګن.

**غاړې** (ğāṛay) ص. ښځ.م. د غاړی مونث؛ وګ. غاړی.

**غاړبندی** (ğāṛbánday) ص. نر.م ۱) بندی غاړی، هغه څوک چې د ګناه په وجه يې غـاړه بنده وي؛ ۲) غاړبند، ګلوبند، هغه څپوټی یا ورين تو کر چې تر غاړې يې تاووي.

**غاړبوجن** (ğāṛbojə́n) نـر.م. يو ډول نـاروغی ده چې د غـوړو شاوي یا د پښو د ګـوتو منځ زخمي کېږي او سوی کوي.

**غاړبوجنېدل** (ğāṛbojənedə́l) مص.ل. د غاړبوجن په ناروغۍ اخته کېدل.

**غاړپټی** (ğāṛpaṭáy) ښځ. م. ج. د غـاړې دسمال، د غاړې پټی.

غاړکی (ğārakáy) ښځ. م. ۱) کنار وزمه، غاړه کی، گردنی، د کارتوسو کتار؛ ۲) امیل، هار.

غاړگی (ğāṛugáy) ښځ. م. اوری، غاړه کی، هار، بندی، د رو پیو نه جوړ شوی امیل.

غاړو (ğāṛú) ص. نر. م. د اوږدې غاړې څښتن.

غاړه (ğā́ṛa) ښځ. م. ۱) غړانگه؛ د زامې او تټر ترمنځ برخه؛ ۲) څنډه، ساحل؛ ۳) گریوان؛ ۵) والگی، زکام؛ ۶) توکه؛ ۷) سندره، غږ.

غاړه اخستل (ğāṛaaxistál) مص. ل. ۱) په زکام اخته کېدل؛ ۲) د زکام شدید کېدل.

غاړه ایښوونه (ğāṛaiṣōwaná) ښځ. م. تن ورکونه، ځان سپارنه، راضي، تسلیمي، تابع کېدنه.

غاړه بندېدنه (ğāṛabandedaná) گنهگارېدنه، عاصي کېدنه، ماخوذ.

غاړه بندي (ğāṛabandí) گناه، عصیان.

غاړه زغ (ğāṛazág) نر. م. ۱) نغمه، غږ، سندره؛ ۲) د بلبل غږ یا اواز.

غاړه غټی (ğāṛağaṭáy) ښځ. م. ۱) غاړه غړی، سینه په سینه، غاړه په غاړه؛ ۲) غاړه غجي.

غاړه غجي (ğāṛağají) ښځ. م. و گ. غاړه غټی.

غاړه غړونه (ğāṛağaṛawaná) ښځ. م. سر غړونه، سر غړاوی، نه منل، ځان ساتنه.

غاړه غړی (ğāṛağaṛáy) ښځ. م. و گ. غاړه غټی.

غاړه گری (ğāṛagáray) ص. نر. م. شفدار، پلوان شریک.

غاړه وړونکی (ğāṛawṛúnkay) صف. نر. م. ۱) غاړه ایښوونکی؛ ۲) اهل، فرمانبردار.

غاړیت (ğāṛít) نر. م. چل، دوکه، ټگي، غولونه.

غاړې غاړې (ğāṛeğāṛe) ق. خوله په خوله، تر خولې ډک، ډک، مالامال.

غاړې غړوند (ğāṛeğṛúnd) نر. ج. سمه لو عر.

غاړې مورگې (ğāṛemōrge) غاړې لمنې.

غاز (ğāz) نر. م. (ج. غازونه) گاز، مراس، بخار، گېس؛ ۱) د اجسامو له دریو گونو حالتو (جامد، مایع، غاز) څخه یو حالت دی؛ ۲) د اوږو شیمه او پې؛ ۳) پنبه، کربوسکه، مالوچ.

غازه (ğāzá) ښځ. م. سرخي، سوروزمه، سرخي او سپېده چې ښځې یې پر مخونو د ښکلا لپاره کاروي.

غازي (ğāzí) نر. م. ۱) هغه څوک چې د خدای په لاره کې جنگېږي؛ ۲) زړور، وهونکی.

غاښ (ğāṣ) نر. م. وړوکی هډوکی چې د انسان و حیوان د خولې په پورتنی او کښتنی ژامه کې اوډل شوی وي او د هغو په وسیله د وړو ژوولو کېږي.

غاښ تومبونی (ğāṣtumbúnay) نر. م. غاښکی، غاښونکی، غاښ تنبونی، هغه آله چې د غاښونو منځ پرې پاکوي.

غاښ چیچل (ğāṣčičál) مص. مت. ۱) خوشکه کول، غضب و قهر کول؛ ۲) تهدیدول.

غاښ چیچن (ğāṣčičán) ص. نر. م. ۱) غاښ چیچک؛ ۲) خوشکتي، غوسه ناک.

غاښ چیچی (ğāṣčičáy) نر. م. ۱) گواښېدنه؛ ۲) قهر، غاښ چیچنه، خوشکه.

غاښخلی (ğāṣxalay) غاښتومبونی، د غاښ خلی، د غاښ تیلی.

غاښ دوره (ğāṣdūra) غاښ چور، غاښ پوډر.

غاښ ربخ (ğāṣrabǰ) مسواک، د غاښو برش.

غاښ سکوی (ğāṣskóy) نر. م. د غاښو ترمنځ درز یا چاک، د غاښو وت.

غاښک (ğāṣák) ص. نر. م. غاښور، غاښو، داړو، داړور، څوک چې لوی لوی غاښونه لري.

غاښنو (ğāṣū́) ص. نب. غاښور.
غاښن موښی (ğāṣmū́ṣay) د غاښنو پاکولو برس.
غاښن وتلی (ğāṣwatálay) ص. نر.م. ۱) کنداس؛ ۲) کرشپ، شپ خولی؛ ۳) مج. خوار، بدمرغه.
غاښنور (ğāṣawár) ص. نر.م. ۱) و ګ. غاښنک؛ ۲) نر.م. ګاښور، راکول؛ ۳) سکو، ښاخي.
غاښنوره (ğāṣawára) ښځ. م. ۱) غاښنور، راکول؛ ۲) سکو، ښاخي، شاخي؛ ۳) ګاښنوره.
غاښن وله (ğāṣwála) ښځ. م. مجرومی، زبره، رله، مجنون بهد، خرانګو، جرانګی.
غاښن ولی (ğāṣwaláy) ښځ. م. د غاښن وله، د غاښن ښځ، د غاښن رینبه.
غاښنوونکی (ğāṣawū́nkay) و ګ. غاښن تومبونی.
غاښی (ğā́ṣay) نر.م. ۱) کوتل؛ ۲) دره، پراده، تیندره، ترازه، قاش، تیندر.
غاښی (ğāṣáy) ښځ.م. ښاخي، شاخي، سکو.
غاښیز (ğāṣíz) ص. نر.م. ج. ۱) غاښنور، دارو؛ ۲) غاښنو، غاښن لرونکی؛ ۳) ګر. هغه ږغ چې د ژبې په څوکې او غاښنوسره تلفظ شي.
غاصب (ğāsib) ص. نر.م. (ج. غاصبان) غصبوونکی د چا مال یا ملکیت په زوره نیوونکی.
غافل (ğāfil) ص. نر.م. ج. ۱) غفلت کوونکی؛ ۲) بې خبره؛ ۳) ناپوه؛ ٤) هېروونکی.
غافلول (ğāfilawál) مص. مت. ۱) په غفلت اخته کول؛ ۲) بې خبره ساتل؛ ۳) هېره باندې غالبول.
غافلېدل (ğāfiledál) مص. ل. ۱) په غفلت اخته کېدل؛ ۲) ناخبره کېدل.
غاکل (ğākál) مص. ل. وزه بغهدل، بغاري کول.
غال (ğāl) نر.م. په لوبه کې چل او چم کونګ.
غالب (ğālíb) ص. نر.م. ج. ۱) بر، بريالی، برلاسی؛ ۲) ډېره برخه، زیاته ونډه؛ ۳) احتمال.

غالباً (ğālibán) ق. ۱) زیاتره، اکثراً؛ ۲) په زیات احتمال.
غالبوزک (ğālbūzák) نر.م. یو ډول دښتي ختمي (خیروګل) دی چې سپين وسره ګلان کوي.
غالبوزه (ğālbū́za) ښځ. م. (ج. غالبوزې) مچی، غومبسه، يوه نښن او زهر لرونکې حشره ده.
غالبوزی (ğālbū́zay) نر.م. یو ډول خامک دی چې د توکر دوارو څنډو ته مساوي ډول د ستنې په وسیله سپرغي کېږي.
غالبول (ğālbū́l) نر.م. غال وغول، څوږ، غالمغال، شور غوغا، غوغا.
غالبېدل (ğālibedál) مص. ل. بريدل، کامیابه کېدل، بريالی کېدل، برلاسه کېدل.
غالوشه (ğālwā́sa) نر.م. لوغي، غوالوشه، دوني، يو لوښی دی چې غوا په کې لوشله کېږي.
غالی (ğāláy) ښځ. م. ج. غالینه، قالینه، قالین.
غالې (ğālé) ښځ. م. ناقي، غال، چم، چل؛ په لوبو يا قمار کې څوک تېر ايستل.
غالی (ğāláy) ص. نر.م. ۱) غالي جن، دروهلی، چمباز؛ ۲) ور. غولی، انګر، د وروستاړي په توګه دځينو کليمو په پای کې راځي- لوبغالی.
غالیجن (ğālejā́n) ص. نر.م. ج. دروهلی، چمباز؛ هغه څوک چې په لوبو یا قمار کې غالي کوي.
غالیچه (ğāličá) ښځ. م. (ج. غالیچې) زلیچه، غالیګی، غالینچه، قالینچه.
غامبوری (ğāmbū́ray) نر.م. (ج. غامبوري) غومبوری، بغون، غمبوری، اننګی، باړخو.
غامض (ğāmíz) ص. نر.م. ج. ۱) پېچلی، مبهم شی؛ ۲) پټ، خوندي، لره څمکه.
غانده (ğāndá) ص. نر.م. ۱) کرکجن، متنفر؛ ۲) غنده.

**غانډو** (ğāndū́) نر. بښځ. م. (ج. غانډوګان)؛ ۱) بې همته؛ ۲) هغه څوک چې په زنګنو ځي.

**غاو** (ğāw) نر.م. ۱) شور، غالمغال؛ ۲) بد ګڼل؛ ۳) مرستې ته څوک راغوښتنه.

**غاوچي** (ğāwčī́) ص. نر.م. (ج. غاوچيان) دروازه وان، پهره دار، ددرزواړي ساتونکی.

**غاور** (ğāwír) ص. نر.م.ج. ۱) غور کوونکی، دقت کوونکی؛ ۲) برلاسی، بريالی؛ ۳) مغرور.

**غاورسی** (ğāwárasay) نر.م. ۱) نياوی، نياوېړی، غم خوونکی، کومکي، مرستيال؛ ۲) د چا په شکايت باندې غور کوونکی.

**غاورسي** (ğāwarásí) ښځ. م. غم خورنه، کومک مرسته.

**غاوليک** (ğāwlīk) نر.م. احتجاج ليک، اعتراض ليک.

**غاوناک** (ğāwnā́k) نر.م. شور کوونکی، شور ماشور کوونکی.

**غاوول** (ğāwawā́l) مص. مت. ۱) ازارول، رېړول، په عذابول؛ ۲) د (غاوه) عمل کول.

**غاوه** (ğāwá) ښځ. م. غوه، مايه، ژغورګ، کوتی، توني، ژورځای.

**غاوی** (ğāwáy) نر.م (ج. غاويان) فريادي، نياومن، دادخواه، مظلوم.

**غاويدل** (ğāwedál) مص. ل. ازارېدل، دردېدل، په عذابېدل.

**غايب** (ğāyáb) نر.م.ج. ۱) الوتيا، الاسنتي، نيهام، پنا؛ ۲) د ګر. دريم شخص.

**غايبانه** (ğāyıbānú) ق. ۱) په غايبه توګه، په نيهامه؛ ۲) پسې شا، الوتيا.

**غايبوالی** (ğāyıbwālay) نر.م. نيهاموالی، غايب، غايبېدنه.

**غايبېدل** (ğāyıbedál) مص. ل. نيهامېدل، پنا کېدل، ورکېدل، پټېدل.

**غايت** (ğāyát) نر.م. ۱) غايه، مقصود، هدف، مرام؛ ۲) آخر، پای.

**غايط** (ğāyít) جن. غايطه، غايطه مواد، د انسان فضله مواد، دکې متيازې.

**غای لمي** (ğāyláme) ښځ.م. غولنې، غولونې، ګومنجک، ګومجکه، غولنکی، غولنه، کوچنی دانه چې معمولاً د سترګې پر څېزمه راځېږي.

**غايوي** (ğāyawí) ص. نب. ۱) د غايې، نهايي په غايې اړوند؛ ۲) د هدف، په مقصود اړوند.

**غايه** (ğāyá) ښځ.م. (ج. غايې) وګ: غايت.

**غبار** (ğūbā́r) نر.م. ۱) خوپ، لړه، دربه؛ ۲) ګرد، دوړه؛ ۳) د سترګو يو ډول ناروغي ده؛ ٤) خ. غبار ليک: يو ډول ډېر کوچنی ليک دی.

**غبانده** (ğbā́nda) ښځ.م. (ج. غباندې) غلنګ، بغاونده، مغانده، قدکشک.

**غباندی** (ğbā́nday) نر.م. مرغری، مرغېری، د غوښو غده.

**غبرا** (ğabrā́) ص. ښځ. م. ۱) سپيره، خړ، هغه شی چې خاورې پرې پرتې وي؛ ۲) مج. ځمکه.

**غبرګ** (ğbárg) نر.م. ۱) جفت، جوړه؛ ۲) قت، غبرګلون.

**غبرګ بهواک** (ğbárgbəwā́k) (ګر.) ترېستې بهواک، ترکيبي کنسونټ.

**غبرګ پښلی** (ğbárgpṣelay) ګر. غبرګې پښلې، غبرګې قافيې.

**غبرګ غونډله** (ğbárgğōndla) غبرګه جمله، دوه ملګري جملې.

**غبرګلون** (ğbárglūn) نر.م. غبرګ، کټ، قت، غبرګون.

**غبرگوالی** (ğbargwā́lay) نر.م. جوړه والی، جفتوالی.

**غبرگول** (ğbargawә́l) مص. مت. ۱) کت کول، قاتول؛ ۲) جفتول، جوړه کول.

**غبرگولی** (ğbargólay) نر.م. جوزا، غبرگوني.

**غبرگون** (ğbargū́n) نر.م. ۱) عکس العمل، ردعمل؛ ۲) جوړه، جفت؛ ۳) غبرگوالی، دولايي؛ ۴) ځواب.

**غبرگونکړ** (ğbargūnkaṛ) گر. انعکاسي فعل.

**غبرگه** (ğbárga) ښځ.م. ۱) د غبرگ مؤنث شکل؛ ۲) هغه لنگه (ښځه يا مال) چې دوه بچي يې زېږولي وي؛ ۳) لپه، پيمانه.

**غبرگېدل** (ğbargedә́l) مص. ل. ۱) جوړه کېدل، کتېدل، قات کېدل، دوه کته کېدل.

**غبن** (ğában) نر.م. ۱) دروهنه، درغلنه، خيانت؛ ۲) فق. په پلورلو او پېرودلو کې زيان کول.

**غبي** (ğabí) ص. نب. نر. ښځ. م. ۱) بېځ، کُند ذهنه، څوک چې ژر زده کړه نه شي کولای؛ ۲) ناپوه.

**غپ** (ğap) نر.م. غو، غوغو، د سپي د غپېدو غږ.

**غپا** (ğapā́) ښځ.م. غپهار، د سپي د غپېدو ږغ.

**غپل** (ğapә́l) مص. مت. غپ غپ کول، غپا کول.

**غپند** (ğápand) ص. نر.م. ج. غپنده، غپاندي، هغه سپی چې ډېر غپېږي.

**غپندوکی** (ğapandū́kay) نر.م. و گ. غپند.

**غپول** (ğapawә́l) مص. مت. ۱) سپي په غپا کول؛ ۲) مج. د چا له خولې اپلتې ايستل.

**غپه** (ğipá) ښځ.م. غوپه، غرق، ډوب، مغروق.

**غټ** (ğaṭ) ص. نر. ج. (ج. غټان) ۱) ستر، لوی؛ ۲) چاغ، شلند؛ ۳) د مقام له مخې لوی سړی.

**غټ باز** (ğaṭbā́z) نر.م. ۱) لوی باز، زورور باز؛ ۲) ص. نر.م. (مج.) دورن، باتو، لاپک.

**غټبازي** (ğaṭbāzí) ښځ.م. لاپې، باتې، دوري.

**غټ پټ** (ğaṭpáṭ) ص. نر.م. ج. ۱) څورب، شلند؛ ۲) پیاوړی، زورور، قوي.

**غټتوب** (ğaṭtób) نر.م. غټوالی، غټتيا، لويوالی، سترتوب.

**غټری** (ğaṭáray) نر.م. غټرکی، راغوندلری شوی.

**غټ مازيگر** (ğaṭmazigár) ق. ولاړ مازيگر، لوړ مازيگر، د مازيگر اول وخت.

**غټ مشر** (ğaṭmašár) نر.م. د ولس لوی مشر، د قام رئيس؛ ۲) نايب سالار؛ ۳) د امير شېرعلي خان د زمانې جرنيل.

**غټ نسی** (ğaṭnásay) ص. نر.م. ۱) گېډو، خېټو؛ ۲) د غټ او وتلي نس خاوند.

**غټو** (ğuṭū́) نر.م. اډی، مرغری، مرغوری، وړې لويې دانې دي چې په ستوني کې پيدا کېږي.

**غټوالی** (ğaṭwā́lay) نر.م ۱) لويوالی، سترتوب؛ ۲) پېړوالی، پنډوالی؛ ۳) چاغښت، چاغوالی.

**غټوکی** (ğaṭū́kay) ص. نر.م. د غټ مصغر.

**غټول(۱)** (ğaṭól) نر.م. ج. غاټول، غاټنول، لاله، رېدی، شندي گل.

**غټول(۲)** (ğaṭawә́l) مص. مت. ۱) لويول، سترول؛ ۲) عزت ورکول؛ ۳) د احترام ور گڼل.

**غټوله** (ğaṭōlá) ص. نب. بې دوله، بې تناسبه.

**غټه(۱)** (ğáṭa) ښځ.م. د شکو ډېرې، د شکو کوټه.

**غټه غرنده** (ğaṭağarә́nda) ښځ.م. د سترگو کسی، نينک، د سترگو ککی.

**غټه کولمه** (ğaṭakulmá) ښځ.م. انهړه، لويه کولمه، اوږده کولمه، کټه کولمه.

**غټی** (ğaṭáy) نر.م. د منجمد شي ټوټه.

**غټی غټی** (ğaṭáyğaṭáy) ص. نر.م. ۱) گردی گردی، غونډ غونډ؛ ۲) ټوټه ټوټه، ذره ذره.

**غتیالی** (ğatyālāy) ص. نر.م. ځوانی ته نږدې شوی، ژنی شوی، ژنکی، زلموټی.

**غتې دانې** (ğatedāné) ښځ.م.ج. ننکی، لویې دانې، دکوچنی دانې، دچیچک دانې.

**غټېدل** (ğaṭedə́l) مص. ل. ۱) لویېدل، سترېدل؛ ۲) چاغېدل؛ ۳) په عزت کېدل؛ ٤) د لوړ مقام خاوند کېدل؛ ٥) مج. متکبره کېدل.

**غجره** (ğajrá) ښځ.م. بېده، یو ښکلی غرنی بوټی دی چې ډېر ګلان کوي.

**غجری** (ğajaráy) ښځ.م. ۱) یو ډول ښکلی انځور شوی توکردی چې د آس ترزین لاندې یې اچوي؛ ۲) قاجاری، د سرو زرو سکه وه.

**غچ** (ğač) نر.م. ۱) کسات، انتقام، بدله، وار؛ ۲) د یو شي د پړکولو یا بیاتي کولو اواز.

**غچکه** (ğačáka) ښځ.م. و.ګ. غیچکه.

**غچول** (ğačawə́l) مص. مت. بیاتي خرچول، په بیاتي غچ غچ کول.

**غچېدل** (ğačedə́l) مص. ل. ګرچېدل، خرچېدل، د بیاتي اواز وتل.

**غځرکی** (ğaǰarkay) نر.م. نوی زېږېدلی مرغومی، نوی زېږېدلی ورغومی.

**غځول** (ğaǰawə́l) مص. مت. ۱) اوږدول، پراخوال؛ لویول؛ ۲) خبره اوږدول؛ ۳) مج. وژل.

**غځونکي** (ğaǰawū́nki) ښځ.ج. غځوونې، ستوماني ایستنه، کهالي ایستنه.

**غځېدل** (ğaǰedə́l) مص. ل. ۱) اوږدېدل، پراخېدل؛ ۲) خبره اوږدېدل، شملول.

**غڅ** (ğac) نر.م. و.ګ: غچ.

**غڅکی** (ğuckáy) نر.م. و.ګ. غوڅکی.

**غدار** (ğadā́r) ص. نر.م. (ج. غداران) ۱) بې وفا، ژبه ماتوونکی؛ ۲) دروغلي، مکار، محیل.

**غدر** (ğádar) نر.م. ۱) خیانت؛ ۲) بې وفایي؛ ۳) مکر، فریب، حیله.

**غدکه** (ğadáka) ښځ.م. چینه، چین، چلمنه.

**غدوی** (ğaduy) نر.م. ۱) غل، څوک چې په داګه غلا وکړي؛ ۲) د غل د کلیمې سره هم غدو راځي.

**غده** (ğudá) ښځ.م. (ج. غدې) مرغړی، مرغېږي، غدود؛ د غوښو غوټه.

**غدی** (ğadáy) ښځ.م.ج. ۱) داړه، چپاو، شبخون؛ ۲) بېړه، تلوار، عجله.

**غذا** (ğizā́) ښځ.م. خواړه، دخوړو شي، دوډۍ.

**غر** (ğar) نر.م. ۱) د ځمکې له سطحې څخه د ډېر وا خاورو راجګه شوې غونډۍ، موره؛ ۲) د سپي غرېدل؛ ۳) ص. نب. تلوار، بېړه، توندي.

**غرا** (ğará) ص. نب. ۱) ځلاند، روښانه؛ ۲) نېک، شریف؛ ۳) مشر؛ ٤) غرهار، د موټر اواز.

**غرابت** (ğarābát) نر.م. ۱) لېرې والی، له هېواد څخه لېرې توب؛ ۲) د کلام پېچلتیا.

**غراره** (ğarā́ra) ښځ.م. ۱) خرجیګه، ځولۍ، هغه ځولۍ چې د بار وړونکیو په شا باربېږي او د شیانو د وړلو لپاره کار ځنې اخلي؛ ۲) مج. خیرې ویرې توکر.

**غرامت** (ğarāmát) نر.م. (ج. غرامات) ۱) تاوان، هغه څه چې ادا یې لازمه وي؛ ۲) پور؛ ۳) ضرر، تاوان، نقص.

**غران** (ğirā́n) نر.م. قران؛ ۱) نیمه پېړۍ د مخه د ۳۰ پیسو سکه وه؛ ۲) پنځوس پولۍ.

**غرانده** (ğrā́nda) ښځ.م. غوروسکه، لوخړه، د اور لمبه چې تور لوګی هم ورسره وي.

**غراوو** (ğarāwū́) نر.م. ۱) د کوچنیانو د لوبو یوه آله وه؛ ۲) ص. نب. نر. ښځ.م. غرتن، لاپو، فضول.

**غرایب** (ğarāib) نر- ج. ۱) لمبري؛ ۲) نادر، حیرانوونکي او عجیب شیان؛ ۳) غرایب لیک.

**غرب**(۱) (ğarb) نر-م. لویدیځ؛ لمرپرېواته، لمر لوېده، ختیځ ته مخامخ، د لمر لوېدو لوری.

**غرب**(۲) (ğrab) نر-م. د ډول یا نغارې وهلو ږغ.

**غرباً** (ğárban) ق. د غرب خواته، د غرب پر لور، د لویدیځ خواته.

**غربت** (ğurbát) نر-م. ۱) پردیسي، مسافري، له وطنه لېري توب ۲) خواري، غریبي.

**غربوړی** (ğarbūṛáy) نر-م. بولډوزر.

**غربول** (ğrabawə́l) مص. مت. د یوه شي وهل، د یو شي دربول یا ډبول.

**غربهار** (ğrabahār) نر-م. صوت. غربا، غربی، دربی، د ډول یا نغارې پر له پسې اواز.

**غربي** (ğarbí) ص. نب. نر. ښځ. م. ج. لویدیځ، د غرب، په غرب اړوند.

**غربی** (ğrabáy) نر-م. ۱) د وندني یا پتې په سر کې اوسپنیزه کړېچې وندنې یا پتې پرې د پوندې ترشا راکلکوي؛ ۲) سګک، حلقه، کړی.

**غربېدل** (ğrabedə́l) مص. ل. دربېدل، د ډول، نغارې یا بل شي له وهلو څخه اواز پورته کېدل.

**غربېړ** (ğarbéṛ) نر-م. غالمغال، شور، خوږ.

**غرپر** (ğárpár) نر-م. غروپر؛ ۱) په ګېډه کې د باد ګړېږ؛ ۲) مج. خوږ، شورماشور، غرپش.

**غرپرت** (ğárpərt) نر-م. چټي خبرې پرتې. باتې.

**غرپش** (ğarpə́š) نر-م. و ګ؛ غرپر.

**غرتک** (ğarták) نر-م. ۱) غرتي کوونکی، چټي غږېدونکی؛ ۲) ګوزاوږ، تیزن، غرتن.

**غرته** (ğárta) ښځ-م. ۱) غره، کونه، سغی، مقعد؛ ۲) مج. چټي خبره، بې ځایه خبره.

**غرتې** (ğárte) ښځ. ج. اپلتې، چټي خبرې.

**غرتی** (ğartáy) نر-م. کندوکی، د قند و نورو شیانو غتی (غونډاری).

**غرچ** (ğrač) نر-م. کرچ، خرچ، د غاښونو د چیچلو اواز.

**غرچی** (ğarčáy) نر-م. صوت. خرچی، کرچی، د زلزلې په وخت کې د کوټې د لرګیو اواز.

**غرچېدل** (ğračedə́l) مص. ل ۱) کرچېدل، خرچېدل، د زلزلې په وخت کې د کوټې د لرګیو اواز؛ ۲) د مستې څخه غورځېدل.

**غرڅپه** (ğarcapá) ښځ. م. ۱) د غره لوی نهر؛ ۲) ستره څپه، د سمندر غټه څپه.

**غرڅن** (ğarcə́n) نر-م. ج. غرنی، غریز، د غره روهي.

**غرڅنی** (ğarcanáy) نر-م ۱) غرنی؛ ۲) غرنی حیوان؛ ۳) د غرني وز یا وزې بېدی؛ ٤) غرنی وز.

**غرڅه** (ğarcá) نر-م. ښځ. م. غرنۍ وزه یا پسه، د غره بزه یا سپرلی، غرنی پسه او غرنی بزه.

**غرڅه ګل** (ğarcagwə́l) نر-م. یو غرنی بوټی دی.

**غرډپ** (ğardáp) نر-م. دپ، لاپې، شاپې، باتې.

**غرز** (ğraz) نر-م. د ډبوال د غورځېدلو اواز.

**غرزول** (ğrazawə́l) مص. مت. ۱) وهل، تکول؛ ۲) ډول یا نغاره وهل؛ ۳) ګرېول.

**غرزی**(۱) (ğrazáy) ص. نرم. دربی، ګربی، د ټوپک، توپ... اواز.

**غرزی**(۲) (ğarzáy) نر-م. روهي، د غره اوسېدونکی، څوک چې په غره کې اوسي یا زېږېدلی وي.

**غرزېدل** (ğrazedə́l) مص. ل. ۱) وهل کېدل؛ ۲) ګرېېدل؛ ۳) د ډول، نغارې غږوتل.

**غرزل** (ğarzəl) مص. ل. د سپي سخت غپل.

**غرزی** (ğarzáy) نر-م. د قهر و غضب په وخت کې د سپي غورېدنه.

**غرشین** (ğaršín) نر-م. غروال، روهي، د غره اوسېدونکی، د غره.

غرض (ğaráz) نر.م. ۱) هیله، حاجت؛ ۲) هدف، مراد؛ ۳) پټه غوښتنه چې د گټې په نیت وي؛ ۴) د بل په ضرر قصد؛ ۵) بلوسه، تېرى.

غرضمن (ğarazmán) ص. نر.م. ج. غرضمې، د غرض خاوند، خود غرضه.

غرغچ (ğargáč) نر.م. گرگیچې، غرغچې وهل، د غره، سرونه جنگول، سرونه سره وهل.

غرغر (ğárğar) صوت. نر.م. ۱) دالوتکې، موټر پر له پسې اواز؛ ۲) د قهر له امله تر شونډو لاندې خبرې کول.

غرغرانک (ğarğaranák) نر.م. گرگرانکه، د کوچنیانو د لوبو یوه آله ده.

غرغرک (ğarğarák) نر.م. د جرثقیل غرغره، د څاه فلزي څرخ.

غرغره (ğarğará) ښځ.م. ۱) د خولې له خوا د مرى سر؛ ۲) دار، سولۍ، غرغره، په دار کېدنه.

غرغر (ğarğár) نر.م. غرغر، کراک، کراو، سختې.

غرغروبى (ğarğarobay) نر.م. ۱) کانې؛ د سیند ښوى کانى؛ ۲) یوه لوبه ده.

غرغره (ğarğara) ښځ.م. ۱) په خوله اوبه رغړول؛ ۲) غرندوکى؛ ۳) د لمر د پریوتلو وروستۍ شیبه؛ ۴) دار، پانسي؛ ۵) داوبو تالو وهنه.

غرغره یي (ğarğarayí) نارام، دانګه یي، ماجراجو.

غرغرى (ğarğaráy) ښځ.م. له ستوني او مرى څخه راوتلى اواز.

غرغشت (ğarğúšt) نر.م. ۱) شور ،څور؛ ۲) مندې، تو پونه؛ ۳) دنجونو یوه لوبه ده.

غرغښت (ğarğášt) نر.م. د ښتنو یو ستر نیکه دى. د ښتنو له څلورو سترو قبیلو څخه یوه قبیله ده.

غرغښتى (ğarğaştáy) نر.م. ۱) یو ډول آلو؛ ۲) غرنى تریخ بادام، غوزپشتى.

غرغنده (ğarğandá) ښځ.م. غزاند، غروسکه، د اور ستره لمبه چې لوگى ورسره مل وي.

غرغور (ğarğúr) نر.م. ۱) غرغر، څور، شور ماشور ۲) د تالندې او برېښنا اواز.

غرغچکو (ğarğečkó) نر.م. د سونگ یو ډول لرگى دى.

غرفه (ğurfá) ښځ.م. ۱) کرکې؛ ۲) بالاخانه؛ ۳) د لرگو یا فلزو وړوکې کوټه یا دوکان.

غرق (ğarq) ص. نر.م. ج. ۱) ډوب، غوپه، په اوبو کې لاهو؛ ۲) مج. برباد؛ ۳) مج. منهمک.

غرقاب (ğarqāb) نر.م. گردابى، په اوبو کې ژور ځاى.

غرقول (ğarqawəl) مص.مت. ۱) ډوبول، غوپول؛ ۲) بربادول، پوپنا کول.

غرقېدل (ğarqedə́l) مص.ل. ۱) ډوبېدل، غوپېدل، ورکېدل؛ ۲) بربادېدل.

غرکمانه (ğurkamā́na) ښځ.م. یو ډول لینده ده.

غرکنو (ğarkanú) نر.م. جولایې، چلوایي غونډې یو ډول سابه دي.

غرکى (ğarkáy) نر.م. ۱) د مستۍ په وخت کې د غوایي اواز؛ ۲) بې ځایه خبرې؛ ٤) دخلکو ډېره زیاته گڼه گونه.

غرگرځى (ğargárjay) نر.م. غرگرځېدونکى، غر ختونکى.

غرگرځېدنه (ğargarjedaná) ښځ.م. غرختنه.

غرگى (ğargáy) نر.م. ۱) غونډارى؛ ۲) گرده اوښوى غټ کانى؛ ۳) هغه تیږه چې په لاس کې ځایېداى او غوړځول کېداى شي؛ ٤) غرگوټى، د غره مصغر، وړوکى غر.

**غرلړی** (ğarlaṛáy) نر.م. د غرو لړی یا سلسله.

**غرمچ** (ğarmáč) نر.م. ۱) د گلانو په منځ کې یو چکر؛ ۲) تور وانجه.

**غرمکی** (ğarmakáy) ښځ.م. غرمه کی، تنکی غرمه، تنکی بربخر، کچه غرمه.

**غرمنی** (ğarmanáy) ښځ.م.ج. د غرمې ډوډۍ، غرمنی مېلمستیا.

**غرمنی** (ğarmanáy) ص. نر.م. د غرمې، په غرمه اړوند- غرمنی ننگولی.

**غرمه** (ğarmá) ښځ.م. نیمه ورځ، بربخر- د ورځې هغه وخت چې لمر پر سر وي؛ ۲) مج. گرمي.

**غرمېښتی** (ğarméštay) نر.م. غرشین، د غره اوسېدونکی، غرنی سړی.

**غرنجالی** (ğranjāláy) ښځ.م. یو ډول خزنده ده چې د اینځر په ونه کې ډېره پیدا کېږي او غټ غټ ښکرونه یا حسي آلې لري.

**غرند** (ğaránd) ص.نر.م.ج. غرنده، غرتک، څوک چې زیاتې خو بېځایه خبرې کوي.

**غرنداز** (ğarandáz) نر.م.ج. و گ. غرند.

**غرنده**[1] (ğránda) ښځ.م. غرندی، ترزنې لاندې د غاړې بهرنۍ برخه، د مرۍ غوټه.

**غرنده**[2] (ğarända) ښځ.م. ۱) غم، ویر؛ ۲) تنگسه، سختي، سخته، لاچاري، تنگسیه.

**غرنگ** (ğrə́ng) نر.م. د اوسپنې یا د بل کلک شي د غورځېدلو اواز.

**غرنی** (ğaranáy) ص. نر.م. روهي، د غره، غروال، غریځی، غریچی، غره ته منسوب، غریز.

**غرواښه** (ğarwāṣá) نر.م. یو ډول غرنې واښه دي.

**غروال** (ğarwál) ص. نر.م. و گ. غرنی.

**غرور** (ğurúr) نر.م. ۱) کبر، لویي؛ ۲) مرغورنه، بې پروایي؛ ۳) چتې شي ته تمه لرنه.

**غروړی** (ğrúṛay) نر.م. غروړه: ۱) د بدن د پوستکي لاندې پړسوب؛ ۲) کینه، رخه، بغض، عداوت، دښمني.

**غروړی غروړی** (ğrúṛay ğrúṛay) ص. نر.م. پړسېدلی، ځای پر ځای غوټې غوټې.

**غروسمه** (ğārōsáma) ښځ.م. غر ودښته، لوړه او ژوره، غر و اواره، غروسم.

**غروښت** (ğarwə́ṣt) نر.م. یو ډول ښځ لرونکی غرنی بوټی دی.

**غرول**[1] (ğarawál) مص. مت. ۱) سره ښوررول، په شور راوستل؛ ۲) څوک په اپلاتو راوستل.

**غرول**[2] (ğrawál) مص. مت. د واده د مراسمو پر وخت زوم په پالنگ یا تخت کښېنول.

**غروی** (ğráway) نر.م. ۱) و گ. ورغوی؛ ۲) د اوبو غروه، د اوبو سیمساره.

**غروینټه** (ğorwéṣta) ښځ.م. غومبک، منځ غونډې یو پوست نبات دی چې د فرش په توگه کار ترې اخلي.

**غره**[1] (ğurá) ښځ.م. (ج. غرې) د قمري میاشتې لومړۍ ورځ یا شپه.

**غره**[2] (ğará) ص.نب ۱) مغرور؛ ۲) ښځ.م. مقعد؛ ۲) د اتڼ په پیل کې لوړ آواز ونه.

**غرهار** (ğarahā́r) صوت. نر.م. ۱) د الوتکې، موټر او... اواز؛ ۲) چتې او بې ځایه خبرې.

**غری** (ğaráy) نر.م. و گ. غرنده[1].

**غرۍ** (ğaráy) ښځ.م. د بخار داني، لړمې، لړمکی، لم لتکه، لړمی، د لړمو ناروغي.

**غریاسی** (ğaryasáy) نر.م. د تنۍ غوراشه، کاځ، هغه سوری چې په کالیو کې جوړېږي.

**غریب** (ğreb) نر.م. سونگټ، سونکه، غریو، په مرۍ کې ژړا، د مایوسۍ ژړا.

**غریب** (ğarib) ص. نر.م. ج. (غریبان) ۱) بېوزله. بېچاره؛ ۲) عجیب؛ ۳) پوازې.

**غریبانه** (ğaribānā) ق. عاجزانه، د بېوزلی، د غریبی، د خواری.

**غریب خانه** (ğaribxānā) ښځ. م. مرستون، د بېوزلو او خوارانو د اوسېدو ځای.

**غریب کار** (ğaribkār) ص. نر.م.ج. خواري کښ، هغه څوک چې کار، غریبي او مزدوري کوي.

**غریب ګوټی** (ğaribgóṭay) ص. نر.م. خوارکی، بېچاره ګی، د غریب مصغر.

**غریبه** (ğaribá) ښځ.م. یو ډول بې اغزو ونه ده چې وړې وړې پاڼې لري او وړې وړې دانې کوي.

**غریبي** (ğaribí) ښځ.م. ۱) بېوزلي، خواري، نېستي؛ ۲) خواري ګالنه، زیار ایستنه.

**غرېچی** (ğarečáy) ص. نر.م. و ګ. غرنی.

**غرېڅی** (garecáy) ص. نر.م. و ګ. غرنی.

**غرېدل** (ğaredál) مص. ل. ۱) په شور راتلل؛ ۲) یو څوک په اپلاتو راتلل؛ ۳) د یوه شي د غرهاري اواز وتل.

**غریز** (ğaríz) نر.م ۱) صبر، زغم، تحمل؛ ۲) ص. نر. م. ج. غرنی. د غره، غرېچی، غرېڅی.

**غریزه** (ğarizá) ښځ.م. (ج. غریزې) ۱) فطرت، ختنه، اصل؛ ۲) بیا. طبیعي شوق، د ټاکلو چارو د سرته رسولو فطري استعداد.

**غریزي** (ğarizí) ص. نب. نر. ښځ.م.ج. جبلي، طبیعي، فطري، ذاتي، په غریزې اړوند.

**غرېو** (ğrew) نر.م. ۱) و ګ. غرېب؛ ۲) صوت. نر.م. غرېده، غرومبېده، د وحشي حیواناتو د قهر اواز.

**غري وري** (ğárīwārī) ق. ۱) زور زور؛ ۲) ځیري ځیري، ځیري پیري، کندي وندي.

**غرېوناک** (grewnák) نر.م. ج. غرېوجن، غرېو نیولی، له غرېوه ډک، غرېب نیولی.

**غړ** (gor) صوت. نر.م. اوق، هوق، د کانګي غږ.

**غړاسپی** (giṛāspay) نر.م. غرسپی، لور ځای دی چې کوچیان یې د خپلو شیانو د ایښودلو لپاره جوړوي.

**غړاسکی** (ğṛāskay) نر.م. ۱) تیر، بری، برور؛ ۲) وېښه، شاتیر.

**غړاشه** (guṛāšá) ښځ. م. غوراشه، غورېشه، ګنده.

**غړاندو** (gaṛāndú) ص. نر.م. ج. غړانګور، اوږد ختی، اوږد غاړی.

**غړانګاو** (gaṛāngáw) نر.م. غړانګوه، یو بوټی دی چې په کلکه ځمکه کې شین کېږي.

**غړانګو** (ğaṛāngū́) ص. نر.م. غړانګور، د بد اواز خاوند، د زړه بدوونکي بوغ ښېښتن.

**غړانګور** (ğaṛāngawár) نر.م. و ګ. غړاندو.

**غړانګه** (ğaṛānga) ښځ.م (ج. غړانګې) ۱) اوږده غاړه؛ ۲) اوږده چیغه؛ ۳) شور ځوږ.

**غړانګي** (ğaṛāngí) ص. نر.م. ۱) اوږد غاړی؛ ۲) بد آوازه، د بد آواز ښېښتن، اوږد غاړی کدو، اوږد کدو.

**غړانګۍ** (ğaṛāngə́y) ښځ.م ۱) صراحي، تونګ؛ ۲) ص. ښځ.م. د غړانګي مؤنث.

**غړب** (ğṛab) نر.م. ۱) پرتم، شان و شوکت؛ ۲) ص. نرم. درب، ګرب، د یوه شي د لوېدو اواز.

**غړبوجن** (gaṛbojā́n) نر.م. و ګ. غاړبوجن.

**غړپ** (ğṛap) نر.م. ۱) پرتم، اوکوب؛ ۲) غوړپ، ګوټ، په یوه ځل د مایعاتو ښېښل.

**غړپړ** (ğaṛpáṛ) نر.م. ۱) د قهر او غوسې غږ، سخته ګریکه؛ ۲) عرض، شکایت.

**غړپل** (ğṛapál) مص. مت. و ګ. غوړپل.

**غړپول** (ğrapawә́l) مص. مت. ګوتل، غړپل، غوړپول، په یوه ځل د مایعاتو څښل.

**غړپېدل** (ğrapedә́l) مص. ل. ۱) غوړپېدل، اینده کېدل په یوه ځل یا غړپ د مایعاتو څښل کېدل؛ ۲) جرېېدل، مایعات سره بیورېدل.

**غړت** (ğrat) صوت. نر.م. غړچ، غړچی، د ستوني نه د مری د تېرېدو اواز.

**غړچ** (ğrač) صوت. نر.م. و ګ. غړت.

**غړچول** (ğračawә́l) مص. مت. ۱) نغړول، اپول، مری تېرول؛ ۲) کرچول، غچول، کرچول.

**غړچی** (ğračáy) صوت. نر.م. و ګ. غړت.

**غړچېدل** (ğračedә́l) مص. ل. ۱) تېرېدل، په یوه ځل له مری تېرېدل؛ ۲) کرچېدل، غچېدل؛ ۳) د غړچ اواز ویستل.

**غړڅکی** (ğrackáy) نر.م. ۱) بخری، بخرکی؛ ۲) توتنی، خځله؛ ۲) د تالندي اواز.

**غړدی** (ğradáy) نر.م. ۱) نغړلی، نغښتی، تاو شوی؛ ۲) جذب شوی.

**غړز** (ğraz) صوت. نر.م. (ج. غړزونه) ګرز، درز، غرز؛ د یوه شي د لوېدلو یا غورځېدلو اواز.

**غړزا** (ğrazā́) صوت. ښځ.م. ګرزا، درزا، غرزا، د یوه شي د لوېدلو یا غورځېدلو اوازونه.

**غړسپی** (ğráspay) نر.م. و ګ. غراسپی.

**غړغړ** (ğarğár) نر.م. و ګ. غرغر.

**غړغړه** (ğarğará) ښځ.م. و ګ. غرغره.

**غړک** (ğrak) نر.م. کینه، بغض، حسد، رخه.

**غړک** (ğarák) نر.م. و ګ. غړکه.

**غړکه** (ğrákә) ښځ.م. ژی، غړک، مشک.

**غړل** (ğarә́l) مص. مت. نغښتل، غنستل، تاوول.

**غړم** (ğram) صوت. نر.م. غړوم، ګرم، غړومب، د توپ و توپک د ډز اواز.

**غړمباری** (ğrambā́ray) نر.م. غړمبهار، غړمبهاری د توپونو او نورو لويو وسلو د ډزو اوازونه.

**غړمبل** (ğrambә́l) مص. ل. غړمبېدل، غورېدل.

**غړمبو** (ğrambū́) ښځ.م. ۱) ښوروند، شورکوونکی؛ ۲) وېنجو، چرتونه، جرتېنه، د لويو په دول يو او بل ته د وپالي اوبه شيندنه.

**غړمبول** (ğrambawә́l) مص. مت. غرومبول، زمري په غړمباري کول.

**غړمبی** (ğrambáy) ص. نر.م. د زمري یا پړانګ د غړمبېدو اواز؛ د توپ د ډز اواز.

**غړمبېدل** (ğrambedә́l) مص. ل. ۱) غړنبېدل، غربدل، زمری غوربدل؛ ۲) اسمان غړبدل.

**غړن** (ğarán) ص. نر.م. ۱) غړند، مراوی، شیته؛ ۲) کمزوری، خوار.

**غړنجهار** (ğranjahā́r) ص.نر.م. غړنجاری، کړنجا.

**غړند** (ğarә́nd) ص. نر.م. ج. غړن، مراوی، شیته، کمزوری، سست.

**غړندتوب** (ğarandtób) نر.م. غړنتیا، غړندوالی، مړاوی والی، مراوی کېدنه، شیته کېدنه.

**غړندول** (ğarandawә́l) مص.مت. ۱) مړاوي کول، شیته کول؛ ۲) کمزوری کول، سستول.

**غړنده** (ğaranda) ص. نب. نر. ښځ.م. ۱) د غړند مونث، مړاوې، شیته، کمزوری، سسته؛ ۲) ګوبنه.

**غړندی** (ğarandáy) ص. نر.م. دروند سترګی، د بد نظر خاوند، بد نظری، نظر باز.

**غړندېدل** (ğarandedә́l) مص. ل. ۱) مراوی کېدل شیته کېدل؛ ۲) کمزوری کېدل.

**غړنګ**(۱) (ğaráng) نر.م. و ګ. غړنه.

**غړنګ**(۲) (ğrang) نر.م. صوت. د غړکي د شاربلو اواز.

**غړنګو** (ğṛangū́) ښځ. م. يو غرنی بوټی دی چې ایرې یې دغړکې د رنګولو لپاره کاروي.

**غړنګه** (ğaṛánga) ښځ.م. و ګ. غړانګه.

**غړنګهار** (ğṛangahā́r) صوت. نر.م. غرنګا، د غړکې د شاریلو او مښلو پرله پسې اواز.

**غړنګۍ** (ğṛangə́y) ښځ.م. غړیاکه، د غوښو غوټې چې د پسونو او وزو په غاړه کې وي.

**غړنه** (ğaṛána) ښځ.م. غړنګ، غښتنه، تاوونه.

**غړواندی** (ğaṛwāndáy) نر.م. و ګ. غړوندی.

**غړوسکه** (ğṛúska) ښځ.م. ۱) ګڼ و تریخ لوګی؛ خړوسکه؛ ۲) هرشی په تېره بیا کښت چې ډېر ګڼ و غوند وي.

**غړوسکی** (ğṛuskáy) نر.م. تیتګی، لومه، هغه دام چې د آس د لکۍ له ویښتانو وي.

**غړوښتی** (ğaṛwaṧtáy) نر.م. غړوبښتی، وربښتی، د غړنی تریخ بادام ونه.

**غړوکی** (ğaṛū́kay) نر.م. وړه غړکه، ورکوټی ګوډی، کوچنی مشک یا ژی.

**غړول** (ğaṛawə́l) مص.مت. ۱) دسترګو ګاتي هاخوا دېخوا ښورول؛ ۲) سترګې خلاصول یا لوخول؛ ۳) کمزوري ساه اخیستل.

**غړومب** (ğṛūmb) صوت.نر.م. و ګ. غړم.

**غړومبل** (ğṛūmbə́l) مص. ل. ۱) غړومب کول؛ ۲) په خوراک کې بې نزاکتی کول.

**غړومبنه** (ğṛūmbə́na) ښځ.م. غړمبنه، غړم کول.

**غړومبول** (ğṛūmbawə́l) مص. مت. غړمبول، په غورا راوستل، په غړم راوستل.

**غړومبهار** (ğṛūmbahā́r) ص.نر.م. غړومبی، غړمبی، د توپ، تالندې اوازونه.

**غړومبی** (ğṛūmbáy) صوت. ۱) و ګ. غړومبهار؛ ۲) نر.م. خاخوری، تندوره، خرخاو، زخمه.

**غړومبېدل** (ğṛūmbedə́l) مص.ل. ۱) غړمبېدل، غورېدل، غړمبی کول؛ ۲) په قهر کېدل.

**غړوندی**[1] (ğaṛwandáy) نر.م ۱) غړواندی، کولند، مورچتی یری، دغاړوي دغاړې بند؛ ۲) ورغندی، جزم، سکون.

**غړوندی**[2] (ğṛū́nday) نر.م. د بوتل غاړه.

**غړونکی** (ğṛū́nkay) فا. نر.م. غښتونکی، تاوونکی، څوک چې یری یا مزی غړي.

**غړونه** (ğaṛawána) ښځ.م ۱) د سترګو خلاصونه؛ ۲) دسترګو ګاتي ښورونه.

**غړوونی** (ğaṛawū́nay) نر.م. کنګالی، غړونی، کنګالوونی، هغه لوښی چې نور شیان پکې کنګالېږي.

**غړی** (ğáṛay) نر.م (ج. غړي) ۱) عضله، ماهیچه؛ ۲) ویښلي، اوخولي، یوراز غوړه دودی ده؛ ۳) ص. عضو، فرد، کس؛ ٤) اندام.

**غړی** (ğaṛáy) ښځ.م. ۱) غاړه، ورمېږ، د کوزې او ګړې غاړه؛ ۲) دغاړې کړی.

**غړیاکه** (ğaṛyā́ka) ښځ.م. و ګ. غړنګۍ.

**غړیت** (ğṛit) نر.م. چل، چم، دروهنه، دوکه.

**غړیتاو** (ğaṛitā́w) نر.م. جولانړ، آس ګرځول و څغلول، د آس تاخت و تاز.

**غړیتوبونډه** (ğṛitōbwanḍa) ښځ.م. د غړیتوب ونډه، حق العضویت.

**غړېدل** (ğaṛedə́l) مص.ل. ۱) سترګې بېرته کېدل؛ ۲) دسترګو ګاتي ښورېدل؛ ۳) په سترګو کې ګرځېدل؛ ٤) ځان په ځنګول.

**غړیک** (ğaṛek) نر.م. ۱) غوړاشه، د تنې سوری؛ ۲) سګک، غربی؛ ۲) د لور غاړه.

**غړیکور** (ğṛikawā́r) ص. نر.م. ج. هغه پسه چې دوه مرغړې یې د ستوني لاندې ځوړند وي.

**غز** (ğaz) نر.م. يو ډول ونه ده، پاڼې يې د نښتر په شېر دي. په تودو سيمو کې زرغونېږي.

**غزا** (ğazā́) ښځ.م. (ج. غزاګانې) جهاد، د دين له دښمن سره جګړه.

**غزال** (ğazā́l) نر.م. ۱) کبلی، د هوسۍ بچی: ۲) مج. معشوقه، معشوق: ۳) الم: ٤) د لمر وړانګې.

**غزاوشوه** (ğazāwšwa) مج. يوه ګړنه (اصطلاح) ده چې د (دا يو شوق دی، دا يو تش هوس دی، آنوخه، په دې نوخه) ماناګانې لري.

**غزل** (ğazál) نر.م. ښځ.م. غزله: ۱) بدل، بدله، هر شعر چې په وزم سره وويل شي: ۲) يو موسيقيز طرز دی: ۳) نر.م. د وړيو يا وېښتانو ورېښنه.

**غزلبن** (ğazalban) شاعرانه، د غزل بڼ.

**غزلبول** (ğazalbol) د غزل شاعر، د غزل سندرغاړی.

**غزلچي** (ğazalčí) ص. نب. نر. ښځ. م. غزل ويونکی، څوک چې غزل وايي.

**غزلنی** (ğazlanáy) نر.م. د غز دانې، د غز ګل.

**غزلون** (ğazlū́n) جن. بری، بور، اينسر، د غز، نښتر، سرپ او... له ونو څخه راتويه شوې مېده ګی.

**غزول** (ğazawə́l) مص. مت. و ګ. غځول.

**غزووني** (ğazawū́ni) ښځ.ج. غځوونکي: ۱) غزوونکي، غزوني، کهالي او ستوماني ايستنه: ۲) تحرک، خوځښت، بېداري.

**غزی** (ğázay) نر.م. (ج. غزي) يوه تور بخنه کوچنۍ مرغۍ ده، خېټه يې سپينه او پښې يې اوږدې دي، د اوبو پر غاړو ګرځي.

**غزېدل** (ğazedə́l) مص. ل. و ګ. غځېدل.

**غژغويی** (ğažğwayáy) نر.م. غوږغويی، غژګاو، غژګی، د غواګانو يو نسل دی.

**غژکه** (ğážka) ښځ.م. و ګ. غېچکه.

**غژه** (ğužá) ښځ.م. د باړې پوله، د پټي پوله.

**غږ** (ğag) نر.م. برغ، ۱) اواز، صوت، هغه شه چې اورېدل کېږي ۲) ناره، ست، خوږبول، پره.

**غږپوه** (ğagpóh) د غږ پوهې يا فونولوجي ماهر.

**غږ پوهه** (ğagpóha) ښځ.م. غږپوهنه، فقه الصوت، سپنپوهه، فونيتيکس، فونولوجي.

**غږ جګی** (ğagjágay) نر.م. غږ لوړی، غږ جګوونکې آله، لاسپيکر، لوډسپيکر.

**غږل** (ğagál) مص. مت. اورېدل، نغوول، اورېدل.

**غږمار** (ğagmā́r) ص. نر.م. ۱) د لوړ او جګ اواز خاوند: ۲) برغ کوونکی، غږ کوونکی.

**غږ نښه** (ğagnáša) ښځ.م. (تن.) د غږ نخښه، د ندا علامه، ندائيه: يوه نښه ده چې شکل يې داسې دی «!» او د هيلې، امر، وېرې، شفقت، تحسين، تحذير، قسم، طعنه، تاکيد، استمداد، ندا او حيرانتيا د څرګندولو لپاره استعمالېږي.

**غږنيوی** (ğagniway) غږنيوونی، د غږ ثبتولو آله.

**غږوغوږ** (ğagoğug) شارت و شورت، هارت و هورت، سر وصدا.

**غږول** (ğagawə́l) مص. مت. برغول: ۱) ترنګول، ډنګول، له يوه شي اواز ايستل: ۲) په خبرو راوستل، د چا تر خولې خبره ايستل.

**غږېدا** (ğagedā́) ښځ.م. خبرې، وينا، ګړا.

**غږېدل** (ğagedál) مص. ل. ګړېدل، خبرې کول.

**غږيز** (ğagíz) ص. نر.م. ج. د غږ، اواز ورکوونکی، غږ والا، برغن، غږن.

**غږيزمزي** (ğagizmázi) نر.ج. و ګ. برغيز مزی.

**غسل** (ğusə́l) نر.م. (ج. غسلونه) ۱) ځان پرېولل: ۲) له شرعي اصولو سره سم له جنابت څخه د پاکېدنو لپاره د بدن مينځل.

**غسلخانه** (ğusəlxāná) ښځ.م. ځرچوبی، چمچوبی، تشناب، د لمبلو ځای.

**غسه** (ğǎsa) ښځ.م. ګورګتی، ګورګنبه، ګورکښ، بغسه، یو حیوان دی چې یو ته وورته دی.

**غش**[۱] (ğix) نر.م. ۱) خیانت؛ ۲) رخه، حسادت، کینه؛ ۳) غولونه، دروهنه، چل.

**غش**[۲] (ğaš) نر.م. و ګ. صرع.

**غشا** (ğišā) ښځ.م. پرده، پوښ، هر هغه څه چې یو شی وپوښي.

**غشک** (ğašk) نر.م. ۱) خطر، خطره؛ ۲) فتنه، پسات.

**غشلړه** (ğašlaṛá) ښځ.م. ۱) له خوشایانو سره ختهګډول؛ ۲) مج. فتنه، د فتنې چاره.

**غشوی** (ğašóy) جن. خوی، زاره وچ خوشایي چې د خو په څېر اور اخلي.

**غشی** (ğášay) نر.م(ج. غشي)غیشی؛ ۱) توږی، تیر؛ ۲) غېسی، د کوندې یو لرګی چې له جغ سره تړل کېږي.

**غښتل** (ğaṣtál) مص. مت. غړل، تاوول، د یړې یا مزي تاوول.

**غښتلتوب** (ğaṣtaltób) نر.م غښتلوالی، پیاوړتیا، غښتلتیا، قوي توب.

**غښتلی** (ğaṣtálay) ص.نر.م. ۱) پیاوړی، تکړه، قوي؛ ۲) ګرندی، چټک؛ ۳) مف. نر.م. غړلی، تاو شوی، تاو کړی شوی.

**غښتلی نومځری** (ğaṣtálaynūmʒaray) (ګر.) زورنومځری، منفصل ضمیر.

**غښته** (ğáṣta) ښځ.م. ۱) د ښځو د تندي د وېښتانو یو ډول جوړونه؛ ۲) کینه، رخه؛ ۲) توطیه.

**غښتی** (ğáṣtay) ص.نر.م. غړلی، تاو شوی، تاو، تاو کړی.

**غصب** (ğasb) نر.م. لاندې کول، په زور سره د یو چا مال یا ځمکه نیونه.

**غصبول** (ğasbawál) مص. مت. لاندې کول، په زور سره د یو چا مال یا ځمکه نیول.

**غصه** (ğusá) ښځ.م. (ج. غصې) غوسه، ۱) قهر، خوشکه؛ ۲) غم، خپګان؛ ۳) هر هغه څه چې په مرۍ کې ونښلي او کښته نه شي.

**غصه ناک** (ğusanák) ص. نر.م. خوشکتي، توغمه ناک، قهرجن، غضبناک.

**غضب** (ğazáb) نر.م. ۱) قهر، غوسه، خوشکه؛ ۲) مج. عذاب.

**غضبناک** (ğazabnák) نر.م.ج. خوشکتي، غضبي، قهرجن، غوسه ناک، توغمه ناک.

**غضروف** (ğazrúf) نر.م. کرپندوکی، کرپندوکی، تنکی هډوکی، کرپندی، چچونکی.

**غضنفر** (ğazanfár) نر.م. ۱) زمری، مزری؛ ۲) غیرسړی، شولخ.

**غفار** (ğaffár) ص. نر.م. ۱) بخښناوو، بخښونکی؛ ۲) د لوی خدای (ج) له صفتو څخه یو صفت.

**غفلت** (ğaflát) نر.م. (ج.غفلتونه) ۱) بې خبري؛ ۲) هېرونه، هېرتیا؛ ۳) ناپوهي، ناداني؛ ۵) بې پروایي.

**غفور** (ğafúr) نر.م ۱) غفار، بخښونکی، ببنونکی ۲) د الله جل جلاله یو صفت دی.

**غک** (ğak) نر.م. بک، بغوره، غکا، د وزې بوغاره، د وزې اواز، د بزې ناره یا بغاره.

**غکل** (ğakál) مص. ل. بوغارې کول، اوازونه کول، غک کول، غکا کول.

**غکول** (ğakawál) مص. مت. بکول، له وزې بغاره یا ناره ایستل، وزه په اواز راوستل.

**غکېدل** (ğakedál) مص. ل. ۱) بکېدل، بغاره کول؛ ۲) د وزې بغارې کول.

**غل** (ğal) نر.م. (ج. غله) غلا کوونکی.

**غلا** (ğlā) نبځ.م. (ج. غلاوې) مال، پیسه.. پټونه، سرقت، د غله عمل.

**غلاغوندک** (ğlāğūndák) ص.نر.م. غلاوندک، غلچکی، غل، چکغل، غلاگرکی، غلاغندک.

**غلاف** (ğılāf) نر.م. (ج. غلافونه) ۱) پوښ؛ ۲) تبکی، تکه؛ ۳) چرتون.

**غلاگرکی** (ğlāgárkay) وگ. غلاغوندک.

**غلام** (ğulām) ص.نر.م.ج. (ج.غلامان) ۱) مریی؛ ۲) مج. بنده، عبد؛ ۳) زوی.

**غلامانه** (ğulāmāná) ق. د غلامی، مریبتابه، د بنده گی په دول.

**غلامول** (ğulāmawə́l) مص. مت. ۱) مریی کول؛ ۲) بنده کول.

**غلامي** (ğulāmí) نبځ.م. مریي واله، مریي توب، بنده گي، د یوه انسان بشپړ پیوستون دی له بل انسانه سره.

**غلانجه** (ğulā́nja) نبځ.م. وگ. غولانځه.

**غلاوزه**(۱) (ğlā́waza) نبځ.م. مچی، غالبوزه، لوز، د گبینو مچمچی.

**غلاوزه**(۲) (ğlā́wza) نبځ.م. غله غوا، هغه غوا چې د لوشلو په وخت په غولانځه کې شیدې ساتي.

**غلبازی** (ğalbā́zay) نر.م. سروزنه، سروزني سوري، د پرتوگ د بډې سوري، د بگې سوري.

**غلبله** (ğalbalá) نبځ.م. شور، ځوږ، ناري سوري، چیغې، فریاد.

**غلبنگی** (ğulbangáy) نبځ.م. وگ. غولبنگی.

**غلبه** (ğalabá) نبځ.م. ۱) برلاسه کېدل؛ ۲) زور، زبردستي؛ ۳) ډېروالی؛ ٤) گڼه گونه.

**غلبېل** (ğalbél) نر.م. پرویزی، چنوونی، پروز.

**غلبېل غلبېل** (ğalbélğalbél) ص. نب. ۱) سوری سوری، کومبېر کومبېر؛ ۲) څرک چې د توپک په گولیو ټپي او سوری سوری شوی وي.

**غلبېلول** (ğalbelwál) مص.مت. ۱) چڼول، چڼل، پاکول؛ ۲) سوری سوری کول.

**غلبېلېدل** (ğalbeledál) مص. ل ۱) چڼېدل، چڼ کېدل؛ ۲) سوری سوری کېدل.

**غلجنگی** (ğaljangay) نر.م. بېځایه ټینگېدنه، په چټي خبره ټینگېدنه یا جنگ کول.

**غلچک** (ğalčák) ص. نر.م. غلچکی، غل گوټی، غلگی، د «غل» مصغر.

**غلچه** (ğalčá) نر.م. د پامیر اوسېدونکی، پامېري ژبې.

**غلشکه** (ğalšaka) نبځ.م. د ل. گور، ورغستلي، دل شوي غنم.

**غلط** (ğalát) ص. نر.م. ج. ۱) ناسم، ناصحیح، خطا، سهوه؛ ۲) تېرووتنه، اشتباه؛ ۳) وران، خراب؛ ٤) تگ، منافق.

**غلط فهمي** (ğalátfahmí) نبځ.م. د چا په اصلي مطلب ومقصد نه پوهېدل یا له هغه څخه ناسم مطلب ترلاسه کول.

**غلطوالی** (ğalatwā́lay) نر.م. ۱) غلطي، غلطتیا، ناسموالی؛ ۲) منافقت، تگي؛ ۳) خرابوالی.

**غلطول** (ğalatawál) مص. مت. ۱) ناسمه وجه ورکول؛ ۲) ورانول، خرابول؛ ۳) تېرایستل.

**غلطي** (ğalatí) نبځ. م. ۱) ناسموالی، خطا، سهوه، تېرووتنه؛ ۲) تگي، چل، منافقت.

**غلطېدل** (ğalatedál) مص. ل. ۱) غلط کېدل، تېرووتنه؛ ۲) غولېدل، تېرووتل.

**غلظت** (ğılzát) نر.م. ۱) گاڼه والی، ټینگوالی؛ ۲) ځیږتیا؛ ۳) سختي؛ ٤) دښمني.

**غل غدوی** (ğalğadóy) نر.م. ۱) غل غدو؛ ۲) ق. د غلا په دول؛ ۳) د غلو د ډلې یو کس.

**غلغنبی** (ğalğunbáy) نر.م. زیاتی خاپی، هغه خاپی چې په اوربو کې زیاتې پیدا کیږي.

**غل غل** (ğalğal) نر.م. ۱) پټ پټ کېدنه، غل غل کېدنه؛ ۲) یو رلز لوبه ده.

**غلغله** (ğulğulá) ښځ.م. شور و خوږ، شور و غوغا.

**غلگی** (ğalgáy) ص. نر.م. و گ. غلچک.

**غلمانه** (ğalmāná) ښځ.م. دغلې د ایښودلو کوټه.

**غلمی** (ğalmáy) نـر.م. ۱) یو دول سارانی نبات دی چې د صابون کار ترې اخلي؛ ۲) غمی.

**غلمینه** (ğalmína) ښځ.م. و گ. غنیمنه.

**غلنی** (ğalanáy) ص. نر.م. ۱) څوک چې دکار له اجرا څخه تېښتي؛ ۲) هغه شاروی چې په پټه او غلا سره خوراک کوي؛ ۳) د کاریز کار.

**غلنی** (ğalanáy) ښځ.م. د مرز په اندازه یوه وره مرغۍ ده چې په جبه‌زارو کې اوسي.

**غلو** (ğulū́) ښځ. م. ۱) تر حد تېرېدنه؛ ۲) تېری، تجاوز.

**غلوزه** (ğalwza) ښځ.م. و گ. غلاوزه[۱]

**غلـولـه** (ğulolá) ښـځ.م. ۱) گـولـۍ، تابلیټ؛ ۲) څرخی؛ ۳) مردکه.

**غله** (ğalá) ښځ.م. (ج. غلـې) ۱) دانې، حبوب؛ ۲) مج. خواړه، پوخ شوی خوراک.

**غله اوښان** (ğalauṣán) د الاداد او پتېتاني پـه څېر یوه لوبه ده.

**غله پلوري** (ğalápl̄oray) غلې والا، غلـه پلورونکی، بقال.

**غله کي** (ğulági) د یوه سرتېري میاشتنـي خوراکي توکي.

**غلی** (ğálay) ص. نر.م. ۱) چپ، چوپ، خاموش؛ ۲) کرار، ارام، بې غرضه.

**غلیا** (ğalyā́) ښځ.م. خاموشي، چوپتیا، کراري.

**غلیاک** (ğalyák) پټه او ناڅاپي نیوکه، شپېنی یرغل.

**غلیاکگر** (ğalyakgar) نر.م. شپېنی یرغلگر، ناڅاپي حمله کوونکی.

**غلیان** (ğalyan) نر.م. ایشېدنه، خوټېدنه.

**غلیانکه** (ğalyánka) ښځ.م. یـارمخچې، شاغوټی، یو دول سارایي مرغۍ ده.

**غلیب** (ğaleb) نر.م. درو، دروهنه، چل، ټگي.

**غلیتوب** (ğalitób) نر.م. ۱) غلیوالی، خاموشي؛ ۲) پټوالی.

**غلیچ** (ğlec) ص. نر.م. پیاوړی، غښتلی، تکړه.

**غلیظ** (ğalíz) ص. نـر.م. ۱) گاټه، خټه، ټینگـه (مایع)؛ ۲) خیرن؛ ۳) سخته، بده (خبره)؛

**غلي غچي** (ğáleğáče) ښځ.ج. دده کول، څنگ کول، انحراف.

**غلی غلی** (ğálayğálay) ق. ۱) پټ پټ؛ ۲) کـرار کرار، ارام ارام.

**غلي غليا** (ğáleğalyā́) ښځ.م. سـره سـنا، چوپـه چوپتیا، کراره کراري، ارامه ارامي.

**غلیلاک** (ğalilák) نر.م. ۱) گڼه گونه، ازدحام؛ ۲) هجوم، له حده تېرېدنه.

**غلي لېوان** (ğálilewā́n) نـر.م. کاني کـرپ، د ماشومانو یو دول لوبه ده.

**غلیم** (ğalím) ص.نر.م. میرخی، میرڅمن، دښمن.

**غلیمانه** (ğalimāná) ق. خصـمانه، د دښمنی په دول، دښمنانه.

**غلیمي** (ğalimí) ښځ.م. دښمني، بدي، پټنه.

**غلیواز** (ğaliwā́z) نر.م. غلیواج، ټپوس، مووک باز، هنس.

**غم** (ğam) نر.م(ج. غمونه) ۱) ماتم، نول، مصیبت؛ ۲) مج. اندېښنه، فکر، چاره.

**غماز** (ğamā́z) ص. نر.م (ج. غمازان) ۱) خبرغل، مواس، چوغلگر؛ ۲) په سترگو او وروځو اشاره کوونکی.

**غمباده** (ğambādá) ښځ.م. گـروم، غروری، هغه پرسوب چې له غم و فکره د سرې په نس کې پیدا کیږي.

**غمبوری** (ğambū́ray) نر.م. و گ. غومبوری.

**غمجن** (ğamjә́n) ص. نر.م. ج. خـوابدی، نتلی، نولجن، خپه، غمگین.

**غمجنوالی** (ğamjә́nwā́lay) نر.م. غمژنوالی، خوابدي، خواشینتیا، تأثر، متأثروالی.

**غمجنول** (ğamjәnawә́l) مص.مت. خواشیني کول، په غم اخته کول، مصیبت ور رسول.

**غمجنېدل** (ğamjәnedә́l) مص.ل. خواشیني کېدل، په غم اخته کېدل، خوابدي کېدل.

**غمچین مار** (ğamčinmā́r) نر.م. چمچمار، کیچه مار، گوس منگور، قمچین مار.

**غمچینه** (ğamčína) ښځ.م. متروکه، قمچینه.

**غم ځپلی** (ğamǰapә́lay) ص. نر.م. غم لړلی، غم ربړولی، غمو او ربړونو کړولی.

**غمخور** (ğamxór) نر.م. ج. (ج. غمخواره) غمخوار، خواخوږی، غم خوړونکی، همدرد.

**غمخوري** (ğamxorí) ښځ.م. غمخواري، خواخوږي غمخورگي، همدردي.

**غمر** (ğamә́r) ص. نر.م. غربو نیولی، ژرغونی، له ژړا ډک، ژړانیولی.

**غمژن** (ğamžә́n) نر.م. ج. و گ. غمجن.

**غمزه** (ğamzá) ښځ.م. ۱) سترگک؛ ۲) کرشنه، نخره، کرشمه؛ ۳) میندک، د تاریاکو چلم.

**غمشریک** (ğamšarík) ص. نر.م. خواخوږی، همدرد، غمخوار، زړه سواند.

**غم غلطي** (ğamğalatí) ښځ.م. غم غلطونه، د غم او ربړ د هېرولو لپاره ځان په یو شه اخته کول.

**غمکش** (ğamkáš) ص. نر.م. ج. ۱) غم گالونکی، غم ایستونکی؛ ۲) غمخور.

**غمگین** (ğamgín) نر.م. ج. و گ. غمجن.

**غم لړلی** (ğamlarә́lay) ص. نر.م. په غم اخته، په غمونو کې گېر، په تکلیفو اخته.

**غمناک** (ğamnā́k) نر.م. ج. و گ. غمجن.

**غموړ** (ğamawә́r) نر.م. ج. ډېر نتلی، ډېر خوابدی، زیات غمجن، ډېر خواشینی.

**غمول** (ğamawә́l) مص. مت. ۱) خبره اوږدول؛ ۲) پوزې ته راوستل، ربړول، ستومانه کول.

**غمی** (ğamáy) نر.م. (غمي) نگین، قیمتي کاڼی.

**غمېدل** (ğamedә́l) مص. ل. ۱) خبره اوږدېدل، ۲) پوزې ته راتلل، په تنگېدل.

**غمیزه** (ğamizá) ناتار، ناورین، غم لړلې پېښه.

**غنا**(۱) (ğená) ښځ.م. غنا، بډایي، شتمني، مړېښت، مال و شته لرنه.

**غنا**(۲) (ğiná) ښځ.م. غنا: ۱) سندره، ساز، سرود؛ ۲) ښه اواز، ښه غاړه، ښکلی غږ.

**غناره** (ğnara) ښځ.م. یو د ول غرنی بوټی دی.

**غناشکي** (ğnāškí) ښځ.م. ۱) د اوبو وړو جریان؛ ۲) د لړو اوبو بهېدنه؛ ۳) نو، زېم، زا.

**غنایم** (ğanāyam) نر.ج. د غنیمت جمع، ولجې، د غنیمت مالونه.

**غنایي** (ğinā́yí) ص. نب. نر. ښځ. م. په غنا اړوند، د ښه اواز، په ښې غاړې مربوط، د ساز و اواز؛ غنایي شعر: بزمي شعر، تغزلي شعر.

**غنج** (ğanj) نر.م. نخره، کرشمه، مکېز، ناز، کنج.

**غنجالی** (ğanjā́lay) ښځ.م. شادینگه، اندرچو، مانیچغ، غنجولی، دورو د لوبو یوه آله ده.

غندل (ğandál) نر.م. ۱) انار، ډنده، ډنډر، ساقه؛ ۲) تندوری، تیندوری؛ ۳) امص. مت. غاندل، رټل، بد ورته ویل، تقبیحول.

غندل غاړه (ğandálğāṛa) ښځ.م. نری غاړه، ډنګه غړی، دنګه غاړه، صراحي غاړه.

غندل غاړی (ğandálğaṛay) ص. نر.م. د نازکې لوړې او نری غاړې خاوند، جګ غاړی.

غندلی (ğandálay) مف.نر.م. ۱) غاندلی، رټلی، تقبیح شوی؛ ۲) نر.م. یکه مبخ، غټ مبخ چې په میدان کې ټک وهل شوی وي او آس وریاندې تړي.

غندنګ (ğandáng) نر.م. و ګ. غندنه.

غندنه (ğandána) ښځ.م. غندنګ، رټنه، ناوړه ګڼنه، تقبیحونه.

غندو (ğandó) ص.نب. لیونی وزمه، لیونی غوندې، د لیونې په څېر، لیونغری.

غندونکی (ğandúnkay) فا.نر.م. رټونکې، بدبیانوونکی، بد ګڼونکي، تقبیحوونکي.

غندوی (ğandáway) نر.م. ترټېزک، تراټېزک، هلم، د اوري بوټی، یوه ترخه شنه ګیاه ده.

غنداڼه (ğandáṇa) ص. نب. بدرنګه، بې دوله، بدشکله، بدقواره.

غنزاخی (ğunzāxay) نر.م. و ګ. غونځابني.

غنکی (ğankáy) نر.م. غنګی، کرکری، دوبچه، یوه آله ده چې له هغې څخه د بنځو مرزو ناري وباسي.

غنګ (ğang) نر.م. د موټر یا الوتکې د تېرېدو اواز.

غنګوری (ğangúray) نر.م. د غوړ پوځکی، د غوړ نرمی، غوړیچنه، د غوړ پوځکی.

غنګهار (ğangahár) صوت. نر.م. غنګاري، د موټر یا بل شي د تېرېدو پرله پسې اواز.

غنم (ğanám) جن. یو ډول غله ده چې له اوړو څخه یې غنیمنه ډوډی پخېږي.

غنم رنګی (ğanámrángay) ص.نر.م. غنم غونی، ارغوش، غنم رنګه، غنم ګونی، رغوست.

غنم ګره (ğanámgára) ص. ښځ.م. هغه ځمکه چې غنم په کې کرل کېږي یا په کې کرل شوي وي.

غنمین (ğanamín) ص. نر.م. ج. ۱) غنم رنګی؛ ۲) له غنمو پوخ شوی، له غنمو جوړ شوی.

غنمینه (ğanmína) ص. ښځ.م. غلمینه، نغن، د غنمو ډوډی، د غنمو ټیکله.

غنویري (ğanwíri) ښځ.م. د څېړي یا نورو ونو نازکې لښتې یا پاڼې.

غنه[1] (ğána) ښځ. م. (ج. غنې) ۱) اغزی، ازغی؛ ۲) ګڼې و ګور اغزن بوټی؛ ۳) وچ او بې پاڼو ښاخونه.

غنه[2] (ğuná) ښځ.م (ج. غنې) ګر. هغه خېشومي غږ چې مخرج یې د ننه په خوله کې وي.

غنه یي غږ (ğunayiğaz) ص.نب.نر.ښځ.م.ج. (ګر.) هغه غږ چې غنه ولري.

غنی (ğanáy) ښځ.م. کوتخه، هغه څېرې چې له اغزنو ښاخونو څخه جوړه شوې وي.

غني (ğaní) ص. نب. نر. ښځ.م. ۱) بډای، شتمن، مور، دولتمن؛ ۲) بې نیازه.

غنیمت (ğanimát) نر.م. (ج. غنیمتونه، غنایم) ۱) ولجه؛ ۲) سود، ګټه.

غڼ (ğaṇ) نر.م. غیڼ، ډګه، د نارینه تناسلي آله.

غڼاسکي (ğoṇāskí) ښځ.م. په ربړ و کړاو سره تګ، ورو ورو تګ، په کړاو ځان رسونه.

غڼه (ğáṇa) ښځ.م. غڼې، مچ پړانګ، جولاګک، عنکبوت، تارګنې، جولاګی، جولا.

غڼې (ğáṇe) ښځ.ج. و ګ. غڼه.

غنیه خوښته (ǧunyaxwṣ́ta) ښځ. م. جنغنۍنه خوشته، اوږده مېرېانه، دارفلفل، د سپینو فلفلو لومړی بار، د پلپل د ونې مېوه ده.

غو[1] (ǧaw) نر.م. ۱) یو ډول کباب دی چې په لرګي کې یې نغاړي او بیا یې د ېخولو لپاره د تودو شګو لاندې ږدي؛ ۲) ناري سوري، چقې.

غو[2] (ǧo) ښځ.م. غوونه، غوول، کورواله، کوروالي، جماع.

غوا (ǧwā́) ښځ.م. (ج. غواوې، غواګانې) د غويي مؤنث، شخوند وهونکی اهلي حیوان دی.

غوابیژی (ǧwābī́žay) نر.م. اسمان شاخکی، حلزون، غواګی، یو ډول نرمه خزنده ده

غوارودونې (ǧwārodū́ne) ښځ.م. غوارورې، غاربدونې، غاروزینه، یو ډول سمساره ده.

غواروې (ǧwārowe) ښځ.م. و ګ. غوارودونې.

غوار (ǧwāṛ) ف. د حال و استقبال د فعلو اصلي جز دی او له «غوښتل» سره اړیکې لري.

غواړه (ǧwāṛá) ښځ.م. غوښتنه، لټون، خلاف قیاس اسم دی.

غواښکی (ǧwāṣkáy) نر.م. سپم، د ستنې سپم، د ستنې سم، د ستنې سوری.

غواص (ǧawā́s) ص. نر.م. لامبوزن، مرجونا، مرجورا، غوټه وهونکی.

غواغوچی (ǧwāǧūčay) نر.م. یو ډول پانې پانې بوټی دی چې د خوندي په شمېر غټ ګل کوي.

غواګړی (ǧwāgə́ṛay) نر.م. سارانی بوټی دی.

غواګۍ (ǧwāgə́y) ښځ.م. ۱) د غوا مصغر؛ ۲) د ګلاب په شمېر یو ډول خړرنګی بوټی دی؛ ۳) حلزون، غوابیژی، قیسی.

غوالوشه (ǧwālwā́ṣa) ښځ.م. لوغی، دکی، توتیې، غوالوشی، دونی، ګودی، دګی.

غوایډنګ (ǧwāydáng) نر.م. د غويي بېډی.

غوایي (ǧwāyáy) نر.م. و ګ. غويي.

غوایي ژبې (ǧwāyiža báy) ښځ.م. اونتی، غوایي ژبه، ګزک پانه، د ګوزبان بوټی، یو ډول ګیاه ده چې په طب کې هم کار ترې اخلي.

غوایي سترګه (ǧwāyistárga) ښځ.م. یو ډول بوټی دی.

غوایي ښکر (ǧwāyiṣkár) نر.م. د یو ډول بوټي نوم دی.

غوباړی (ǧobā́ṛay) نر.م. غوبانی، یو ډول مچ دی چې غويي چیچي؛ ۲) ګونګټه، د غوشیانو حشره؛ ۳) ص. نر.م. شریر، پساتي.

غوبانی (ǧobā́nay) نر.م. و ګ. غوباړی.

غوبر (ǧobár) نر.م. خوږ، شور، غوغا.

غوبری (ǧobə́ray) نر.م. بارخو، اننګی، ژمبری، غمبوری، غومبوری.

غوبل (ǧobál) نر.م. (ج. غوبلونه) ۱) په غوایانو درمند میده کول؛ ۲) پایمالونه؛ ۳) مج. د خلکو ګڼه ګونه.

غوبلرګی (ǧoblargáy) نر.م. موږی، درنګلی؛ هغه لرګی چې د درمند په منځ کې ټک وهل کېږي او د غوایانو پړی ورپورې ترل کېږي.

غوبلول (ǧobalawál) مص. مت۱) په درمنده کې د غوایانو سره غله میده کول؛ ۲) وهل، پایمالول.

غوبلېدل (ǧobaledál) مص. ل. ۱) درمند میده کېدل؛ ۲) تربېښو لاندې کېدل.

غوبنی (ǧobanáy) ص. نر.م. ۱) غوبون، غوبه، پاده وان؛ ۲) د غوبه مصغر.

غوبنې (ǧobaní) ښځ.م. غوبه توب، غوبون توب.

غوبون (ǧobū́n) ص. نر.م. و ګ. غوبه.

غوبه (ǧobā́) ص. نر.م. غوبنی، پاده وان، ګوروان.

**غوپول** (ğupawə́l) مص. مت. غوپه کول، غوټه کول، ډوبول، په اوبو کې ننه ایستل.

**غوپه** (ğúpa) ص. نب. نر.م. ښځ. ج. ډوب، غرق، غوټه.

**غوټی** (ğuṭə́y) ښځ.م. ډبی، چمته، ډوبی، ډډی، د توپک د دارو کڅوړه.

**غوټ** (ğwaṭ) ص. نر.م. ج. ۱) چاغ، قوي، کلک؛ ۲) بالکل، قطعي؛ ۳) پرې، غوڅ، قطع.

**غوټ پټ** (ğwaṭpáṭ) ص. نر.م. ۱) چاغ، شلند؛ ۲) غوټ په غوټ، په پرېکنده ډول.

**غوټ په غوټ** (ğóṭpağóṭ) ص.نر.م. ۱) ځرګند، او ځار، جوت؛ ۲) توري په توري.

**غوټ کوټ** (ğwə́ṭkwə́ṭ) ص. نر.م. ۱) غټ؛ ۲) تازه.

**غوټکی** (ğoṭakə́y) ص. نر.م. چاغکی، غوند مند، د غوټ مصغر.

**غوټن** (ğoṭən) نر.م. غوټه غوټه، غوټې لرونکی.

**غوټنډی** (ğuṭəndə́y) ص.نر.م. غوپه وهونکی.

**غوټو** (ğúṭū) نر.م. سره غاړه، وچه مری، حلقوم.

**غوټول** (ğwaṭawə́l) مص. مت. ۱) غټول، چاغول، ځربول، قوي کول؛ ۲) لویول، سترول.

**غوټه**[1] (ğwáṭa) ښځ.م. ۱) سکوټه، بېخي، قطعي، سکیره، چور.

**غوټه**[2] (ğúṭa) ښځ.م. ۱) ګنډه، ګره؛ ۲) تنې؛ ۳) د جلغوزي هغه غوزه چې دانې په کې وي؛ ۴) و.ګ. سوټیچ.

**غوټه**[3] (ğuṭá) ښځ.م. ۱) حمله، برید؛ ۲) ص. نب. نر. ښځ.م. غوپه، غرق؛ ۳) چپه، ځپه، د ناروغی.

**غوټه پښتو** (ğwə́ṭapaṣtó) ښځ.م. نېره، روانه او سمه پښتو.

**غوټه غوراشه** (ğúṭağwaṛáša) ښځ.م. ۱) ستنه او ګاچ؛ ۲) ستن، تار، ګوتمه او ...؛ ۳) مجازاً جهیز.

**غوټه لمنځه** (ğúṭalmánja) ښځ.م. د لمنځې یو ډول لویه ونه ده.

**غوټی** (ğuṭáy) نر.م. ۱) حباب، کوبی؛ ۲) د تندي یو پسول دی؛ ۳) ځوکه، غوندی، سرګی.

**غوټی** (ğuṭə́y) ښځ.م. ۱) د ګل یا پاڼې هغه نوې زخه او غوټه چې لا غوړېدلې نه وي؛ ۲) د غاړې یو ډول امیل؛ ۳) په توپک کې ویشتنې ته ځان چمتو کول؛ ۴) کلي، چابي؛ ۵) شبنم، د خولې او اوښکې قطره.

**غوټیالی** (ğuṭyālə́y) نر.م. ۱) هغه مرغېړې چې د ځاروي تر ستوني لاندې وي؛ ۲) د ښځو د غاړې یو ډول امیل.

**غوټیالی** (ğuṭyālə́y) ښځ.م. ۱) د ښځو د غاړې یو ډول امیل دی؛ ۲) هغه ځاروی چې په غاړه کې د غوټې ځوندی ولري.

**غوټی ځان** (ğoṭaycan) غوټی تولوونکی.

**غوث** (ğaws) نر.م. ۱) مرسته، اعانت؛ ۲) غاورسي؛ ۳) غاو، فریاد؛ ۴) پناه، ملجاء.

**غوجر** (ğojə́r) نر.م. ښوره، شوره، د ځمکې په مخ سپینه مالګینه خاوره.

**غوجل** (ğojə́l) نر.م. غوجله، ګورنډه، هغه کوټه یا ځای چې غوا او غوایان په کې تړي.

**غوجو** (ğojū) نر.م. د کان ژورتیا، د معدن ژوروالی.

**غوچ** (ğawč) ص. نر.م. ۱) ژور، تندوره، عمیق؛ ۲) نر.م. ایری ګډ، ایری پسه، قوچ.

**غوچالی** (ğawčā́lay) نر.م. غوچانی، ډوغل، غوچ ځای.

**غوچانی** (ğawčā́nay) نر.م. و.ګ. غوچالی.

**غوچوالی** (ǧawčwālay) نر.م. غوچواله، ژورتیا، ژوروالی.

**غوچول** (ǧawčawál) مص. مت. ژورول.

**غوچه** (ǧawčá) ښځ.م. (ج. غوچې) غوچک، هغه دوغل چې تاکونه په کې کښېښنول کېږي.

**غوچېدل** (ǧawčedə́l) مص. ل. ژورېدل.

**غوڅ** (gwac) نر.م. پرې، شلېدلی، قطع.

**غوڅ اکثریت** (ǧwacaksaryát) قاطع اکثریت، غوڅ د برېښت.

**غوڅاوو** (ǧwacāwú) ص. نب. غوڅوونکی، پرې کوونکی.

**غوڅ د برېښت** (ǧwacderə́st) و.ګ. غوڅ اکثریت.

**غوڅکی** (ǧockáy) نر.م. ۱) غوټی؛ ۲) غټ خوسکی یا خوسی.

**غوڅ ملاتړ** (ǧwacmlātár) ټینګ ملاتړ، پرېکنده ملاتړ، یو مخیز ملاتړ.

**غوڅوالی** (ǧwacwā́lay) نر.م. قطع والی، پرې والی.

**غوڅول** (ǧwacawə́l) مص. مت. پرې کول، قطع کول، شلول.

**غوڅون** (ǧwacū́n) نر.م. قطع، مقاطعه.

**غوڅوونی** (ǧwacawū́nay) نر.م. قطع کوونکی، پرې کوونکی، د پرې کولو آله.

**غوڅېدل** (ǧwacedə́l) مص. ل. پرې کېدل.

**غوډل** (ǧoḍál) نر.م. ۱) و.ګ. غونډل؛ ۲) هغه فصل چې ورو ایستلو ته نیږدې شوی وي.

**غوډلی** (ǧoḍaláy) نر.م. ۱) دلوځې د سر غونډاری؛ ۲) شیرګی، په اوسو کې پوخ شوی د جوارو وږی.

**غور** (۱) (ǧwar) نر.م. (ج. غورونه) غوړوی، غمبه، جاغور؛ ۲) مج. پاړسوب.

**غور** (۲) (ǧoar) صوت. نر.م. ۱) د اوبنې، برېښنا، سپې او... اواز؛ ۲) نر.م. غوری، برخه، نصیب؛ ۳) مج. میراث.

**غورا** (ǧorā́) ص. ښځ.م. غرهار، غورهار، غورها.

**غوراډاپی** (ǧūrāḍāpáy) ښځ.م. لاپې، باټې، غورې، دورې، دوزې.

**غورازه** (ǧorāzá) ښځ.م. ۱) غورېزه، بوسه؛ ۲) ص. نب. لمبې وتلی، له کاره وتلی، زوړ.

**غورانګه** (ǧūrāngá) ښځ.م. لمبه، غرغنده، شغله.

**غوربېړ** (ǧurbéṛ) نر.م. ګڼه ګوڼه، ازدحام.

**غورپړ** (ǧwarpáẓ) نر.م. عورپش، های هوی، خوږ، شورماشور، غورپش، ګرونج.

**غورچان** (ǧwarčā́n) ص. نر.م. و.ګ. غوره چون.

**غورچي** (ǧurčí) ص. نب. باټک، باټو، لاپک، دورن، غورتن، دزو.

**غورځاوڼ** (ǧwarǰawaṇ) غورځنګن، یرغلګر، حمله کوونکی.

**غورځکه** (ǧūrǰáka) ښځ.م. غورمبه، غورځکه، داور غرغړې، د اور لمبه، قوي لمبه.

**غورځنګ** (ǧwarǰang) نر.م. (ج. غورځنګونه) ۱) غورځی، جوښ او خروښ، د اوبو څپه او شدت؛ ۲) مج. حمله، برید؛ ۳) مج. خوځښت، نهضت.

**غورځول** (ǧorǰawə́l) مص. مت. ارتول، اړتول، اچول، اړتاوول، شړل، ګوزارل.

**غورځی** (ǧorǰáy) نر.م. ۱) غورځنګ؛ ۲) توپونه او خېزونه وهل؛ ۳) لاس و پښې وهنه یا اچونه، ۴) په زوره غږ یا چیغه.

**غورځې پرځې** (ǧorǰepárǰe) ښځ.م. ۱) بې واکه لاس و پښې اچونه؛ ۲) هغه کوښښ هلې ځلې؛ ۳) توپونه وهنه، خېزکې وهل.

**غورځېدل** (ğwarǐedə́l) مص. ل. ۱) السوېدل، ګرزارېدل، ارتاوېدل؛ ۲) ګډېدل، اېشله کول.

**غورځېدن** (ğorǐedan) غورځېدا، غورغونه، حذف، له منځه ورل، لېرې کول.

**غورس** (ğwárs) ص. نر.م. ۱) سخت، کلک؛ ۲) پند، پېړ، غټ.

**غورسول** (ğwarsawə́l) مص.مت. ۱) سختول، کلکول؛ ۲) پندول، ضخیمول، پېړول.

**غورسېدل** (ğwarsedə́l) مص. ل. ۲) پندېدل، پېړ کېدل؛ ۱) کلکېدل، سختېدل.

**غورغوښت** (ğorğúšt) نر.م ۱) مستي؛ ۲) مېله، غرمیچ، غرغښت، ساتېري.

**غورغوښتو** (ğorğuštu) فا. نر.م. هوسا، بنداري، چړچه مار.

**غورغوښتی** (ğorğūštáy) نر.م. ورلښتی، غورېښتی، وربښتی، غرنی بادام.

**غورغی** (ğūrğáy) ښځ.م. کړی، کړه، چمبی، حلقه.

**غورکمانه** (ğwarkamā́na) ښځ م. د اوږدې دانګې ژې لرونکې لینده.

**غورکی** (ğūrkáy) نر.م. ۱) د پیشو غورېدنه؛ ۲) له پېغور او نفرته ډکې خبرې؛ ۳) دخلکو ګڼه ګوڼه او شور.

**غورلنډسه** (ğwarlandása) ښځ.م. غورځکه، د اور غټه او قوي لمبه.

**غورله انا** (ğwárlaanā́) ښځ.م. غوره نیا، ورله انا، د مور نیا، د پلار انا، د نیا او نیکه مور.

**غورمچ** (ğwarmáč) نر.م. بګڼ، غټ مچ، یو ډول لوی مچ دی.

**غورمنه** (ğwarmaná) ښځ.م. ناک، نشپاتی، د نشپاتي ونه او میوه.

**غورمه** (ğormá) ښځ.م. (پخ.) قورمه، یو ډول خواړه دي.

**غوږنډاز** (ğūrundā́z) نر.م. بوږ یو انکه، پرپرکی، غرانداز، د ماشومانو د لوبو یوه آله ده.

**غورنیکه** (ğwárnika) نر.م. (ج. غورنیکونه) ورنیکه، د نیکه پلار، د پلار نیکه.

**غوره**(۱) (ğwára) ص.نب. ۱) چاڼ شوی، انتخاب شوی؛ ۲) مج. ښه، نېک، صالح.

**غوره**(۲) (ğóra) ښځ. م. (ج. غورې) ۱) دوره، لاپه، باته؛ ۲) پرتم، دبدبه؛ ۳) اومه او شنه میوه؛ ٤) له تروو انګورو څخه وچه شوې مساله؛ ۵) یو ډول نبات دی؛ ٦) بربری، د اوښ بربری.

**غوره پوره** (ğūrápūrá) ښځ.م. غپا، دسپي غورېدا او غوغو، د سپي رېږېدل.

**غوره ټپه** (goraṭápa) ق. ناڅاپه، نابېره، غور ډبه، بې خبره، ناخبره، په بې خبرۍ کې.

**غوره چوڼ** (ğwáračūṇ) ص. نر.م. ج. غور چاڼ، تاکل شوی، خوښ شوی، انتخاب شوی.

**غوره کوونکی** (ğwárakawūnkay) نر.م. چاڼ یا چڼ کوونکی، انتخابوونکی.

**غوره ګل** (ğoragul) نر.م. کلکه خټه ده چې د چاڼ او وسکوله پاسه، کوټي په بام اچوله کېږي.

**غوره لم** (ğoralám) نر.م. یو غرنی بوټی دی.

**غوره نیا** (ğwáranyā́) ښځ. م. ګ. غورله انا.

**غوره والی** (ğwárawā́lay) نر.م ۱) چاڼ، انتخاب؛ ۲) امتیاز، ښه والی.

**غورهار** (ğorahā́r) صوت. نر.م. غرهار، د سپي، زمري، د توپ ډډزو... پرله پسې اوازونه.

**غوری** (ğoráy) نر.م. (ج. غوري) ۱) ترغاب غټ لوښی؛ ۲) غور، برخه، قسمت، نصیب.

**غوري** (ğori) نر.م. مج. پندي، پلندي، جوالي.

**کیته** (kīta) ص. ښځ.م. واژه، خلاصه، ریته، د خولې یو صفت دی.

**کېټ** (keṭ) نر.م. شهرازه: ۱) هغه دېوال چې د کلا د ورۀ لـه مخې څخه راتاوېږي؛ ۲) تر کلا چاپېره دېوالونه.

**کېټلی** (keṭalāy) ښځ.م. مرغانچه، د چرګو او چرګانو کوټنی.

**کېج** (kej) ص.نر.م. ۱) کېږ، قېچ، کلک، هغه سابه چې کلک شي او له خوراکه وځي؛ ۲) نر.م. هغه پېرۍ چې کلک غنبتل شوی وي.

**کېجلی** (kejālay) نر.م ۱) اسي، بخیل، ممسک، شوم؛ ۲) بد چلنده.

**کېجم** (kejām) نر.م. شاګوړی، نمله، هغه لمڅی چې د آس د زین لاندې اچول کېږي.

**کېچ** (keč) نر.م. د خامتا (بیستی) په څېر یو ډول اوبدل شوی څادر.

**کېچټ** (kečāṭ) ص. نر.م. د لږ عمر، کم عمره، کم سنه، د لږ عمر خاوند.

**کیچړی** (kičṛāy) جن. وګ. کچړی.

**کیچیړي** (kičaṛī) جن. چکړ، چکړي، چقړي، ختې.

**کیچی** (kičāy) ص.نر.م. ووړکی، کمکی، کوچنی.

**کېڅ** (kec) نر.م. دوړی، قبر، ګور، مړیستون.

**کېڅکنی** (keckānay) نر.م.ص. قبر ایستونکی، ګور کنونکی، قبرکن.

**کېڅی** (kecāy) ښځ.م. ۱) دوېګی، کسبت، د نایانو د سامان کڅوره؛ ۲) کڅوره، کیسه.

**کیخکه** (kīxakā) ښځ.م. کوشتوری، هغه هندوانه چې تر نورو وروسته پخه شي.

**کیخه** (kīxa) ښځ.م. خرماشی، خرمیاسی، خرنګې غوماشه.

**کیخی** (kīxay) نر.م. کخی، کوخک، کوخی، واړه سپین چینجي چې په مقعد کې پیدا کېږي.

**کېداره** (kedārá) ښځ.م. (مو.) کېدارا، کېدار، د دیپک راګ یوه اوډوراګنۍ ده.

**کېدای** (kedāy) ف. کېدلای، کېدی، کېدلی، د فعل د امکاني حالت څرګندوونکې کلیمه ده.

**کېدل** (kedə́l) مص.ل. ۱) شول، واقع کېدل؛ ۲) موجودېدل، موندل کېدل؛ ۳) زېږېدل.

**کېدونی** (kedūnay) نر.م. شوونی، د کېدلو ور چاره یا شی.

**کېده** (kedā) نر.ج. ۱) شول، شوه؛ ۲) نر.م. زېږېده؛ ۳) ف. کېدنګ، ترسره کېده.

**کېدئ** (keday) ف. کېده، (اجزاء، وقوع).

**کیر** (kīr) جن. کهیر، نری شیدو وریجې.

**کیرانه** (kirānā) ښځ.م. پرچون شیان، پرچون مال.

**کېرته** (kertā) ښځ.م. د ګندنې په څېر یوه ګیاه ده چې پاڼې یې کلکې او تېرې دي.

**کیرړی** (kirṛāy) نر.م. چینچار، کریړی، کرړی؛ یوه حشره ده چې جامه وهي.

**کېرغه** (kerğā) ښځ.م. یو بوټی دی چې سپین ګل کوي او بېخ یې نری وي.

**کیرکیرک** (kirkirāk) نر.م. کب خورکه، یوه مرغۍ ده چې خوراک یې کب دی.

**کېرندی** (kerandāy) ښځ.م. تیپچه، کرکری، یوه آله ده چې د مرز په څېر اوازونه ترې وباسي.

**کېره** (kéra) ښځ.م. یوه ونه ده چې سرې سرې داڼې کوي او پاڼې نه لري.

**کېری** (kerāy) نر.م. څوک چې د سیند له شګو زر بېلوي.

**کېرۍ** (kerŝy) ښځ.م. ۱) دشرخ او ارابې هاره؛ ۲) هغه غلبیل یا ناوه چې شګه او زر سره بېلوي د شګو د زرو چانوونکی غلبیل.

**کیري توب** (kiritób) نر.م. له شګو څخه د زرو ایستلو (استخراج) کسب.

**کېړ** (keṛ) نر.م. (ج. کېړونه) ۱) شپول، پند غالی؛ ۲) وېره، اړه؛ ۳) منداوو، غابېور؛ ٤) فرشي دروازه او کړکۍ؛ ٥) کتار، چیل، لین.

**کیړکیچو** (kiṛkičo) ښځ.م. ۱) ترتېرۍ، تتله؛ ۲) سست، لړزانده، بې ثباته.

**کېړه** (keṛá) ښځ.م. ۱) کړبکۍ، کوټه دوله کندو چې له کړکو او لښتو څخه جوړ شوی وي؛ ۲) پېکل، چجکی؛ ۳) پولکی، دوه ښاخی مېخ چې پال پرې په کونده کې ټینګوي.

**کېړه ګۍ** (keṛagáy) ښځ.م. اوار دایروي لوښی چې له لښتو څخه جوړېږي.

**کېړۍ** (keṛay) ښځ.م. ج. شپلې، هغه شپلی چې له خرمنې او منج څخه جوړېږي.

**کېږ** (kež) ص. نر.م. و ګ. کیږ ۱).

**کېږ** (kiẓ) نر.م. نازل شوی، اوربدلی، کښی، کینبن.

**کېږدل** (keẓdál) مص. مت. ایښوول، کېښوول، کېښودل.

**کېږدۍ** (keẓdáy) ښځ. م. ج. و ګ. کږدۍ.

**کېږلی** (keẓaláy) نر.م ۱) کږلی، رټلی؛ ۲) ذلیل، حقیر.

**کېږه** (kéẓa) ص. ښځ. م. وتره، وتره څمکه، اړولو ته برابره څمکه.

**کېس** (kes) نر.م. پت، آب، عزت، ابرو.

**کیسر** (kaysúr) ص. نر.م. قیصر؛ ۱) تود سوړ؛ ۲) هغه باروړونکی ښاروری چې خوله یې د هوا له املهوچه شي او بیا ناروغه شي.

**کیسه**(۱) (kisá) ښځ.م. (ج. کیسې) ۱) قصه، نکل، مراسه، ناول، داستان؛ ۲) له بدن څخه د خیرې پاکولو وړه کڅوړه چې لاس ته اغوستل کېږي؛ ۳) (بیا.) کڅوړه، خریطه، سیسټ، په نباتاتو او ژویو کې هر کڅوړه دوله جوړښت؛ ۲) جېب.

**کېسه**(۱) (kesá) ښځ.م. ۱) کودالی، کهی، کښی؛ ۲) کېله، یو خوږه مېوه ده.

**کیسه بر** (kisabúr) ص. نر.م. ګندکپ، ګنپکپ، څوک چې جېبونه وهي.

**کیسۍ** (kisáy) ښځ.م.ج. آړه، اړي، کسی، اړونه، لغز، چیستان.

**کېسۍ** (kesáy) ښځ.م. و ګ. کېخۍ.

**کیسي** (kaysí) نر.م. ج. قیسي، خورماني، یو ډول زردالو ده، رنګ یې سپین او څه سوروالی لري.

**کېش** (keš) نر.م. (ج. کېشونه) ۱) کیچ، یو ډول سپنسین ښادر دی؛ ۲) دین، مذهب؛ ۳) ګروهه، عقیده؛ ٤) ایین؛ ٥) لاره.

**کیش** (kiš) صوت. نر.م. کیشه، کشي، کیشي، د چرګ او مرغیو د شړلو اواز.

**کیشپ** (kišáp) نر.م (ج. کیشپان) کشب، کیشو، کاسه ګرپ، شمشتی، میچنی، شوتتی.

**کیشک** (kišák) نر.م ۱) ښار او تعقیب؛ ۲) پیره داري.

**کیشکارل** (kiškārál) مص. مت. بنکارل، کشکارل ورتوکول، سپی توکول.

**کیشکره** (kiškára) ښځ.م. ۱) کاغی غونډې یوه خړه مرغی ده؛ ۲) کاغی، کګیږکه، عکک؛ ۳) یوه مرغی ده، په دري کې یې خبرک بولي.

**کیش کیش** (kiškiš) صوت. نر.م. د مرغیو او چرګانو د شړلو اواز.

**کیشور** (kišŏr) نـر.م. یو دول ویښته لـرونکی او پت لرونکی چینجی دی.

**کېښت** (keşt) نر.م. ټینګلر، مقاومت.

**کیښکري** (kişkarí) نـر.ج. ۱)زړی، خـځـوزی؛ ۲)چزغولی، زربوکی، څغغولی.

**کېښکل** (keşkál) مص.مت.و ګ. کښېکښل

**کېښودل** (keşodál) مص.مت. کېښوول، ایښودل، ایښوول.

**کیښه** (kişă) ښـځ.م. ښـیښـه، هینداره، آئیـنه، شیشه.

**کیښی** (kişáy) ص.نر.م. خصي.

**کیغاچ** (kiğăč) نر.م. ۱)قیغاچ، نامستقیم، کوږ، دخمکې یېوې کولو داسې طرز چې له یوه کونج نه تـر بل کـونج پورې کار وشـي؛ ۲)مج. اړي کوونکی، حاسد، مخالف.

**کیف** (kayf) نـر.م. ۱) د کمیت مقـابل، کیـفیت؛ ۲)خوند، لذت، خوښي؛ ۲)نشه، مستي.

**کیفر** (kayfár) نر.م. سزا، جزا، مکافات، د ښو او بدو بدله.

**کیفي** (kayfí) ص.نب.نر.ښځ.م.ج. دکمي مقابل؛ ۱)مـاهیتي، مـاهیـوي، کیـفیت ته منسـوب؛ ۲)کیف لرونکی.

**کیفیت** (kayfiyát) نر.م. ۱)څرنګوالی، د یوه شي صفت، حالت، اوځنګه والی؛ ۲) کیف.

**کیفیتي** (kayfyatí) نر.ښځ.م ۱)دکیفیت، کیفيّ؛ ۲) جنجالي، کیفیت لرونکی.

**کېک** (kek) نـر.م. (ج. کـېکـونه) (پـخ.) یو دول خواږه دي.

**کیکار** (kikár) جن. ۱) کـکـر، ګـبین، شـات؛ ۲)دومبکی.

**کیکته** (kikáta) ښځ.م. یو دول لړ.ه ده.

**کېکټس** (kektás) نر.م. کاکتوس؛ و ګ. زقوم.

**کیکر** (kikár) نر.م ۱) یوه ونه ده چې پاڼې یې څېړې دي؛ ۲) یو دول ښکلی کورني چرګ دی.

**کیکوړی** (kikóṛay) نر.م. ۱) ککوړی، کوچنی دودی، وره دودی؛ ۲) و ګ. ریکاټ.

**کیل** (kil) نر.م. (ج. کیلونه) سیږ، کیله، کـرک، د ییوې کرښه.

**کېل** (kel) نر.م. ۱) راز، نیاز؛ ۲) لوبه، مشغولا.

**کېلک** (kelák) نر.م. ۱) پښندي، ځولانه، د آس د پښې پړی؛ ۲) د تهکي تسمه.

**کیلک** (kilák) نر.م. کیلیک، ژغـندی، جغلندی، ژغوندی، زغلندی، ځغلندی، جغندی.

**کېلو** (k(i,e)ló) ت. ت. یـو ترندتـوک دی چې په میتریک سیستم کې کارېږي او د «یو زر» مانا لري ،لکه دکیلوګرام، کیلوواټ....په کلیمو کې.

**کېلوګرام** (k(e,i)lográm) نر.م.د کتلې او وزن یو واحد دی چې له زرو ګرامو سره مساوي دی.

**کېلول** (kelawál) مص. مت. ۱) د حبوباتو سرسر کول؛ ۲)د غلې او حبوبو څپ وهل.

**کېلومتر** (kelomítar) نـر.م. کیلومېتر؛ د واټن یا طـول یو واحد دی چې لـه ۱۰۰۰ مترو سره مساوي کېږي.

**کېلوواټ** (kelowát) نر.م.کېله واټ،د برقي قوې یـو واحـد دی چې له ۱۰۰۰ واټو سـره مساوي کېږي.

**کیله** (kíla) ښځ.م. ۱)و ګ. کـیـل؛ ۲) د کښت هغه ځمکه چې نژدې ٤۰ جریبه کېږي.

**کېله** (kelā) ښـځ.م. ۱)یـو دول خـوږه مېـوه ده؛ ۲)چونې، کلکه او مضبوطه نظامي کلا.

**کېلی** (keláy) نر.م. مېخک، د ږنېږ، مېخ، د پښې په پوتکي کې کلک ځای.

**کېمپ** (kemp) نر.م. (ج. کېمپونه) وګ. کمپ.

**کيمخ** (kimux) نر.م. کېمخت، سالګري خرمن، تنجه خرمن، يو ډول پخه او دانه داره څرمنه.

**کيمخت** (kimūxt) نر.م. وګ. کيمخ.

**کېمره** (kemrá) ښځ.م (ج. کيمري) کامره، کمره، يو آله ده چې انځورونه پرې اخيستل کېږي.

**کېمنډل** (kemandál) مص.مت.وګ. کښېمنډل.

**کېمه** (kemá) ښځ.م. دبه، د تورو تېلو لوښي چې له څرمني څخه جوړ شوی وي، له ګاني څخه تېل پرې را اخيستل کېږي او په نورو لوښو کې اچول کېږي.

**کېميا** (kemyā́) ښځ.م. ۱) کيميا، شيمي، هغه پوهنه چې د موادو له ترکيب، جوړښت، خواصو او تعاملاتو څخه بحث کوي؛ ۲) ګډون، اختلاط.

**کېميابوټی** (kemyābūṭay) نر.م. ۱) دکېميا بوټی؛ ۲) د ناوياتو والي کنايه.

**کېمياپوه** (kemyāpóh) ص. نب. نر.م. کېمست، د کېميا متخصص، درمل جوړوونکی، کېمياګر.

**کېمياګر** (kemyāgár) نر.م ۱) اېلکميست، هغه څوک چې د سرو زرو لټون او دارزانو فلزاتو څخه يې د طلا د جوړولو په لاره کې خپل ژوند وقف کړی وي؛ ۲) کېمياپوه.

**کېمياوي** (kemyāwí) ص. نب. نر. ښځ.م. کېميکل: ۱) په کېميا اړوند؛ ۲) نر.م. ښځ.م. جن. هر هغه ماده چې د يوې کېميايي عمليې په وسيله لاس ته راغلې وي يا په داسې عمليه کې کاريږي.

**کين** (kin) نر.م. کينه، بغض، خپل، حسد.

**کېناستل** (kenāstə́l) مص.ل. کښېناستل، کښېنستل.

**کېناستون** (kenāstún) نر.م. کېناستنه، ناسته، کښېنستنه، کښېناستنه.

**کېناوه** (kenāwá) ف. کښېناوه، کښېنوه.

**کيندل** (kində́l) مص.مت. کينل، کندل، کنودل، کنستل.

**کينډی** (kinḍáy) ښځ.م. قالب، چوکاټ.

**کينکه** (kinā́ka) ښځ.م. کنه، کنيې، د سپېږي تخم او بچي.

**کينګاري** (kingā́ri) ښځ.ج. وګ. کونګاري.

**کينګړی** (kingṛáy) ښځ.م. کاږ، کړېړ، مېډه کاني، جغل.

**کينل** (kinə́l) مص. مت. کيندل، کنستل، کنودل کندل.

**کينودی** (kinóday) نر.م. سورنګ، سرنګ، اورړ نقب.

**کېنول** (kenawə́l) مص. مت. وګ. کښېنول.

**کينه** (kiná) ښځ.م (ج. کيني) ۱) دښمني، عداوت؛ ۲) کرکه، نفرت، تنفر؛ ۳) غيچ، بدله، انتقام؛ ٤) رخه.

**کينه ګر** (kinagár) ص. نر.م. ج. کينه توز، کينه کښ، کينه کوونکی، د کيني خاوند.

**کيڼ** (kiṇ) ص.نر.م.ج. چپ، ګڅ، ګڅی، د ښي ضد.

**کيڼ ګرز** (kiṇgárz) نر.م. (عس.) کيڼ ګرځ، يوه قوماندہ ده چې دهغې په ورکولو سره عسکر خپل کيڼ لورته د ۹۰ درجو په اندازه ګرځي.

**کيڼی** (kiṇáy) ص.نر.م. ۱) ګڅی، چپی، کيڼ لاستی؛ ۲) نر.م. يو ډول ساراني نبات دی.

**کېواته** (kewātá) نر.ج. ۱) کښېواته، کېوته، ګېرېده؛ ۲) کوزېده، کښېته کېده (له موټر، اس يا ...).

**کیواړ** (kiwāṛ) نر.م. کولپ، قلف، قفل، جندره.

**کیوبیزم** (kyūbízam) نـر.م. (نق.) کـوبیـزم، د عصـري نقاشـۍ یو مکتـب دی چې د طبیعت د ریالسـتیـک څرګندون پرځای په انځوروکې له هندسي کـرښو ، مکعبو او داسې نـورو مجـردو او ذهنـي شکلو څـخـه کار اخـلـي او سـیوری له منځه وړي.

**کېوتـل** (kewatə́l) مـص. مت. ۱) کـښېـوتـل، ګـېډل، اخته کېدل؛ ۲) راکوزېدل.

**کیوتین** (kyūtin) جن. (بو.) مـوم وزمـه ماده ده چې د سـیلیولوس په ګـډون د ډېـرو نبـاتـاتـو پوستکی جوړوي.

**کېول** (kewə́l) نر.م. د یو ډول ګل نوم دی.

**کېون** (keun) نر.م (ج. کېونونه) میتی، کېونګی، لکه د تسکوري په څېر د تیږو او بوټو ویستلو یوه آله ده.

**کېونګی** (keungay) ص. نر.م. د کېون مصغر، و ګ. کېون.

**کیهان** (kayhā́n) نـر.م. ۱) جـهان، نـړی، دنیا؛ ۲) روزګار؛ ۳) فضا، هوا.

**کیی** (kayáy) نر.م. کیی؛ ۱) کرکی، نی (قلم)؛ ۲) دورمه، نی.

# گ

**گ** (gāf) نر.م. د پښتو الفبې څلورد پرشم توری چې ابجدي ارزښت يې «۲۰» دی.

**گابږ** (gābáẓ̌) نر.م (ج. گابږونه) خوفناک، وېروونکی، ډارروونکی.

**گاپه** (gā́pa) ښځ. م. (ج. گاپې) دوغل، کنده، خرخوری، خارخوری.

**گات** (gāt) نر.م. (ج. گاتونه) محصول، ټيکس.

**گاترۍ** (gātráy) ښځ. م. ج. گاترۍ، لوړ، يو ډول لوړ دی چې د اري په څېر غاښونه لري.

**گاترياړ** (gātryā́r) فا. نر.م. د آسونو لپاره زين جوړوونکی.

**گاتل** (gātә́l) مص. مت. ژوبلول، ټپي کول، زخمي کول، گواتل.

**گاتموني** (gātmū́nay) نر.م. (ج. گاتموني) گتموني، اورلېږوني، شکروه، د اور لېږلو لرگی.

**گاټ** (gāṭ) نر.م. ۱) محصول، چونگی؛ ۲) گټ، غټ کانی؛ ۳) څوکيدار، پهره دار.

**گاټړۍ** (gāṭráy) ښځ.م.ج. پنډوکی، پنډه کی، گاټلۍ، غوټه، گنډه، گېډۍ، گالۍ، بنډل.

**گاټلۍ** (gāṭláy) ښځ.م.ج. غوټه، گنډه، پنډه کی، گېډۍ.

**گاټه** (gā́ṭa) ښځ.م. (ج. گاټې) ۱) ټينگ مايع شی؛ ۲) په وياله کې د اوبو کمېدنه؛ ۳) نيمگړتيا، کمی؛ ٤) گواټه، د ښپياکو ډېری.

**گاټی** (gā́ṭay) نر.م (ج. گاټي) ۱) گاټ ټولوونکی، محصول ټولوونکی، عشر اخيستونکی، تحصيلدار؛ ۲) د سترگو ککی، د سترگو تور و سپين.

**گاټي** (gā́ṭi) نر.ج. ۱) واړه کاڼي؛ ۲) د گاټی جمع. د سترگو تور و سپين.

**گاټۍ** (gāṭáy) ښځ.م. ج. گېټۍ، د چلم گېټۍ.

**گاجره** (gajára) ښځ.م. (ج. گاجرې) گازره، زردکه.

**گاچ** (gāc̆) نر.م، (ج. گاچونه) نازک یا نری توکر، یو ډول نازکه وریښمینه توټه، گاچی.

**گاچی** (gāc̆áy) نر.م. (ج. گاچي) شپولغالی، پنډ غالی، شپول، د رمې پنډولو ځای.

**گاخ** (gāc) نر.م. ج. گال، غوښت، یو ډول وړې وړې دانې دي چې له انسانانو پرته د مرغانو خوراک هم دی.

**گادړ** (gādáṛ) ص. نر.م. (ج. گاډران) بې عقله، ناپوه، نادان.

**گاډر** (gāḍə́r) نر.م. (ج. گاډرونه) د اوسپنې تیر یا بش.

**گاډۍ**[2] (gāḍə́y) ښځ.م.ج. بگی، ټانگه.

**گاډۍ**[3] (gāḍáy) ښځ.م.ج. ډبر، سومبې، کونه.

**گاډی** (gāḍay) نر.م. (ج. گاډي) موټر، گاړی، د سپرلیو یا سامان آلاتو د وړو راوړو یوه وسیله لکه موټر، لارۍ او...

**گاډی بول** (gāḍayból) نر.م. موخې، پیتو، له تیکرې نه جوړه شوې موخې چې کوچنیان ورباندې لوبې کوي.

**گاډي پلور** (gāḍiplór) نر.م. گاډي پلورنه، گاډي پلورنځی، موټر پلورنځی، موټرپلورنه.

**گاډي پلوری** (gāḍiplóray) ص. نر.م. (ج. گاډي پلوري) گاډي پلورونکی، موټر خرڅوونکی، موټر فروش.

**گاډی چلوونکی** (gāḍayc̆alawúnkay) فا. نر.م و گ. گاډیوان.

**گاډېر** (gāḍér) نر.م. گاډېل، گاډېله، د غنمو، جوارو له گډو شویو اوړو نه پخه شوې گډوله ډوډۍ.

**گاډېنۍ** (gāḍenáy) ښځ.م. ج. گاډۍ، گیراړۍ، د کوچنیانو د لوبو یوه آله چې رغړول کېږي.

**گاډی والا** (gāḍaywālā́) نر.م. ۱) د گاډۍ خاوند؛ ۲) گاډیوان، گاډی چلوونکی.

**گاډیوان** (gāḍiwā́n) ص.نر.م. د گاډی چلوونکی، گاډی والا، بگی والا.

**گار** (gār) نر.م. (ج. گارونه) ۱) تاوان، نقصان؛ ۲) ص. وران ویجاړ، ضایع، توی؛ ۳) لاحقه.

**گارډ** (gārḍ) نر.م. ساتندوی، ساتندویان، گارد، د چارواکو د ژغورنې یا ساتنې ټولی.

**گارکی** (gārkáy) ښځ.م. بې نظمه او وروکی کور، کورگی.

**گارنیزون** (gārnizū́n) نر.م(ج. گانیزونونه) چونی، د ښار د امنیت ساتنې لپاره پوځي کلا.

**گارو** (gārū́) نر.م. یو ښه بوی والا بوټی دی چې سپین گل کوي.

**گارول** (gārawə́l) مص. مت. تاوانول، نقصان کول، گارونگ، گارونه.

**گاره** (gā́ra) ښځ.م. (ج. گاري) ۱) د گنو ډبرې چې تر خاورو لاندې پټه کړی شوې وي. ۲) سمڅه، په غره کې طبیعي غار؛ ۳) شگلنه او کانیزه ځمکه.

**گاري** (gā́re) ص.ج. شلېدلي، توټې توټې، رنجې رنجې، خیرې پیرې، گاري بگاري، گاري واري.

**گارېدل** (gāredə́l) مص.ل. تاوانېدل، نقصانېدل، بې فایدې خرڅ کېدل، گارېدنه، گارېده.

**گاري گريتي** (gāregríte) ص.ج.و گ. گاري.

**گاري واري** (gārewā́re) ص.ج. توټه، توټه، گاري بگاري، شلېدلي.

**گاړ** (gāṛ) ص. نر.م. ۱) گډوډ، وران ویجاړ، رنگ؛ ۲) نر.م. کاړ، کانیزه ځمکه، ډبرین، ټراره.

**گاړبوزه** (gāṛbū́za) ښځ.م(ج. گاړبوزې) گرگوزه، گاگروزه، گاړگوزه، له یخنۍ ږچېدنه.

**گاړکوزی** (gārkūzáy) نر.م. گاړبوزی، گړوزی، نینګاړی، گاړگوزی.

**گاړگوتی** (gārgū́tay) ص.نر.م.ج. گونجې گونجې وېښته، گوړگوتې، گالګوتې، اړگوتې.

**گاړگونېدل** (gārgūnedə́l) مص.ل. وېښته گونجې گونجې کېدل، گالګوتې کېدل.

**گاړل** (gāṛə́l) مص.مت. ګډوډول، ورانول، وېجاړول.

**گاړه** (gā́ṛa) ښځ.م. (ج. گاړې) ۱) د مستو ببخ؛ ۲) ژی، دده، مورگه؛ ۳) پنډغالی، شپول، گاش، گاچی، خوشته وچه مېوه، چې د خوراک لپاره وچه شوې وي.

**گاړی** (gā́ṛay) ښځ.م.ج. د سپرلیو یا نورو سامان آلاتو د وړلو بګۍ.

**گاړیال** (gāṛyā́l) نر.م. (ج. گاړیالونه) دېوالي ساعت، لویه گړی چې دېوال ته ځوړندېږي.

**گاړین** (gāṛín) ص.نر.ج. کانیز، شګلن، د کانو او شګو.

**گاز** (gāz) نر.م. ۱) غاز؛ ۲) بیاتي، قیچي.

**گاش** (gāš) نر.م. و.گ. گاړه.

**گاښ** (gāṣ) نر.م. و.گ. غاښ.

**گاک** (gāk) نر.م. گاکي، لاګی، بیپاري.

**گاگ** (gāg) نر.م. چینه، رود، ویاله.

**گاگره** (gāgrá) ښځ.م. ۱) کلکه باجري، سره نښتي کاني؛ ۲) نر.م. یو ډول کوتره.

**گاگریه** (gāgnyá) ص.ښځ.م. د گاگرې، کومه ځمکه چې سره نښتې تیږې ولري.

**گاگړ** (gāgáṛ) ص.نر.م. چاغ او ځورب سړی، دبو صفته سړی.

**گاگړه** (gāgáṛa) ښځ.م. (ج. گاگړې) ۱) د کوچنیانو په خوله پخه خبره؛ ۲) ژړه پخه ښځه.

**گاگه** (gā́ga) ښځ.م. (ج. گاگې) ناوه، پرناله.

**گاگی** (gāgáy) نر.م. غروی، ځمره، وېروونکی چې په کروندو کې د مرغانو او ځناورو د وېرولو لپاره درول کېږي.

**گاگی** (gāgáy) ښځ.م. په گاگ پورې اړوند. و.گ. گاگ.

**گاگیر** (gāgír) نر.م. ۱) بې پروا؛ ۲) وارخطا، سرهوا کاواک، سرایله.

**گاگیرتوب** (gāgirtób) نر.م. بې پروایي، گاگیرتیا.

**گاگیرول** (gāgirawə́l) مص.مت. بې پروا کول، هواگیرول.

**گاگیره** (gāgirá) ښځ.م. بې پروا، وارخطا، سرهوا، هغه چرگه چې ترهګیو اچولو وروسته نوره پرځای نه کښېني.

**گاگیرېدل** (gāgiredə́l) مص.ل. بې پروا کېدل، هواگیرېدل.

**گاګېړی** (gāgéṛay) ص.نر.م. ۱) کم عقل؛ ۲) چتیات ویونکی؛ ۳) خیرن سړی.

**گاګېړنه** (gāgeṛána) ص.ښځ.م. چتله او خیرنه، مردار خوره ښځه.

**گاګېل** (gāgél) نر.م. انګار، سور اور.

**گالکوتی** (gālkū́tay) نر.م. و.گ. گاړگوتی.

**گالل** (gālə́l) مص.مت. ۱) زغمل؛ ۲) ساتل، محفوظول؛ ۳) سرته رسول، خلاصول.

**گالې گېټې** (gālegéṭe) ښځ.م. ویتې چیتې، ناز او نخرې، گالې گیچې.

**گالې گېچې** (gālegéče) ښځ.م. ناز او نخرې.

**گالۍ** (gāláy) ښځ.م. و.گ. گاترې.

**گام** (gām) نر.م. (ج. گامه، گامونه) ۱) قدم، له یوه قدمه تر بل قدمه فاصله؛ ۲) مج. اندازه؛ ۳) تېرېدل.

**ګام پر ګام** (gāmpərgā́m) ق. نر.م. پرلپسې، پلهٔ پر پلهٔ، قدم پر قدم.

**ګامور** (gāmawár) ص. نر.م. د اوږدو قدمو خاوند، لوی لوی ګامونه اخیستونکی.

**ګامول** (gāmawə́l) مص. مت. اندازه کول، په قدمونو اندازه کول، ګامونه.

**ګامېدل** (gāmedə́l) مص. ل. په قدمونو ځمکه اندازه کېدل، کچ کېدل، ګامېدنه.

**ګامېښه** (gāmésa) ښځ.م. و ګ. مېښه.

**ګان** (gān) ص.نر.م. ۱) لایق، موزون؛ ۲) لاحقه ده چې د ځینو مذکرو نومونو په پای کې راځي او جمع جوړوي، لکه: آلو – آلوګان.

**ګانټو** (gānṭū́) نر.م. کوره، یو ډول کوره.

**ګانټه** (ganṭa) ښځ.م. ګېنټه، ساعت، ګړی.

**ګانچه** (gānčá) ښځ.م. یو ډول نښته یې څیز، چې ځنبل کېږي.

**ګانده** (gā́nda) ص. ګهانده، ګهنده، سبا، راتلونکی وخت، آینده زمانه، مستقبل.

**ګانډی** (gānday) ښځ.م. ۱) د ګانۍ یا ارهټ میل چې غوایان یې ګرځوي؛ ۲) یو ډول ګانه.

**ګانډو** (gānḍū́) نر.م. کوني، کونه ورکوونکی، مفعول.

**ګانډوله** (gānḍúla) ښځ.م. د پښو په سر د ناستې طریقه.

**ګانډولی** (gānḍólay) نر.م. ګنډولی، کمیس، ګنډی.

**ګانډه** (gā́nḍa) ښځ.م(ج. ګانډې) ۱) پرتوغابښ؛ ۲) غټ پنډه کی، ګنډه؛ ۳) یو ډول پسول.

**ګانډۍ** (gānḍə́y) ښځ.م.ج. د ښاتو د مچیو ځاله.

**ګانډی** (gā́nḍay) نر.م. ورخ، بند، تره.

**ګانډیاله** (gānḍyā́la) ښځ.م. (ج. ګانډیالې) و ګ. ګنډیاله.

**ګانډېل** (gānḍél) نر.م. ۱) غندلی، د شرشمو سابه؛ ۲) هغه پیاز چې تخم لپاره پرېښودل کېږي.

**ګانزه** (gānzá) ښځ.م. د لاس څلورمه ګوته، هغه ګوته چې ګوتمۍ وراغوستل کېږي.

**ګانکړ** (gānkáṛ) نر.م. ګانګړ، دایره، حلقه، شپول.

**ګانګوړه** (gāngúṛa) ص. ښځ.م. (ج. ګانګوړې) ترترې، هغه خبره چې په نښتي ژبه وکړی شي، ترتره.

**ګانګوړی** (gāngū́ṛay) ص.نر.م. ترتری، تتری، هغه څوک چې نښتې خبرې کوي.

**ګانه** (gāná) ښځ.م. (ج. ګانې) لوبه، سندره، په ترنم سره د شعرونو ویل.

**ګانۍ** (gānə́y) ښځ.م.ج. د ګونګرو ګانو پټۍ چې د څارویو په غاړه کې اچول کېږي.

**ګاني** (gāní) نر.م. د آسمان تر څلورمې برخې د لمر ځګېدل.

**ګاڼل** (gāṇə́l) مص. مت. پسولل، ګاڼه وراچول، سینګارول، جوړول.

**ګاڼه** (gāṇá) ښځ.م. (ج. ګاڼې) ۱) پسول، کالي؛ ۲) ګرو.

**ګاڼه چي** (gāṇačí) ص. نر.م. هغه څوک چې د چا ځمکه په ګاڼه واخلي.

**ګاڼه وال** (gāṇawā́l) ص. نر.م. ګروي دار.

**ګاڼه وړی** (gāṇawáṛay) ص.نر.م. ګاڼې والا، ګروي والا.

**ګاڼه ییز** (gāṇayíz) ص.نر.م. ګاڼه شوی، ګرو شوی لکه کور.

**ګاڼه ییزه** (gāṇayíza) ص.ښځ.م. (ج. ګاڼه ییزې) ګاڼه شوې، ګرو شوې لکه ځمکه...

**ګاڼۍ** (gāṇə́y) ښځ.م.ج. د تېلو یا ګنیو کارخونه.

**گانی مار** (gāṇaymā́r) ص. نر.م. گاني مار، د گانی مزدورکار، گانی وال.

**گانی وال** (gāṇaywā́l) ص. نر.م. د گانی خاوند، گانی لرونکی سړی.

**گاوچو** (gāwčū́) نر.م. هغه ترنگړ چې د زنبېل غونډي دوو خواوو ته لرگي ولري.

**گاور** (gāwár) نر.م. قهر، غوسه، غضب.

**گاوز** (gāwáz) نر.م. (ج. گاوزونه) غرڅه، یو دول غرنی حیوان چې لوی لوی ښکرونه لري.

**گاوسره** (gāwsára) ښځ.م. و.گ. گاولی.

**گاوشاړه** (gāwšā́ṛa) ښځ.م. یو دول مرغی دی.

**گاوله** (gā́wla) ښځ.م. (ج. گاولې) بوټان، پایزار، یو دول بوټان چې کوچیان یې اغوندي.

**گاولی** (gā́wlay) نر.م. ۱) گاوله؛ ۲) گاوسره؛ ۳) واسکټ.

**گاومېښ** (gāwméṣ) نر.م. سنډا، د مېښې نرینه.

**گاوڼ** (gā́waṇ) نر.م. د ښځو گډا او سرود.

**گاونډی** (gāwanḍáy) نر.م. همسایه، کوڅه شریک، خواته اوسېدونکی.

**گاونډتوب** (gāwanḍtób) نر.م. گاونډیتوب، په یوه چم کې نېږدې نېږدې سره اوسېدنه.

**گاونه** (gā́wna) ښځ.م. هغه لرگینه پاړه چې په گانی کې گوره پرې ړل کېږي.

**گاووکی** (gāwū́kay) ښځ.م. د ښځو د پېکې یو دول اوبدل یا جوړول.

**گاوه** (gāwá) ښځ.م. لاوڼ، کړو، تودې کړې شو ملې.

**گاوېز** (gāwéz) نر.م. غټه بېډی، غټه سپېښته.

**گاهر** (gāhár) نر.م. پاده، گورم، گوار.

**گاهک** (gāhák) نر.م. ۱) گواښنده، گواښونکی؛ ۲) پېرونکی، اخیستونکی.

**گاهنامه** (gāhnāmá) ښځ.م. کلیز، جنتري.

**گاهو** (gāhū́) ص. نر.م. پاده وان، شپون.

**گاهي** (gā́hay) نر.م. ژور زخم، ژور ټپ.

**گای** (gāy) نر.م. ژمنه، لوز، قول، وعده.

**گایل** (gāyál) نر.م. ۱) ټپي، ژوبل، زخمي؛ ۲) مص. زخمي کول، کهلول، ځورول.

**گایېدل** (gāyedә́l) مص. ل. خبري کول.

**گب** (gab) نر.م. ۱) غټ، خورب؛ ۲) سور و سپین؛ ۳) په گډه بچي.

**گبر** (gábar) نر.م. ۱) اور لمانځونکی؛ ۲) مج. کافر.

**گبری** (gábray) نر.م. ترهبدلی، اوتر، وارخطا.

**گبری** (gabráy) ښځ.م. گېتهس، د جرابو بند.

**گبړه** (gabṛá) ښځ.م. غټه گټه، د کاڼي پلنه تخته چې د پورته کېدو ور وي.

**گبړي** (gabṛí) نر.م. و.گ. گنې.

**گبڼ** (gabáṇ) نر.م. حمل، بار، بچی.

**گبڼی** (gabaṇáy) ښځ.م. ۱) حامله، بلاربه؛ ۲) ربړېدېدنه، گرېبدنه، تربدنه.

**گبڼې** (gabaṇé) ښځ.م.ج. بگنې، د یوې غرنۍ ونې د مېوې نوم دی چې کرورې ته ورته ده.

**گبه** (gabá) ښځ.م ۱) و.گ. گبړه؛ ۲) یوه تېږه ده چې کوچنیان یې د لوبې په وخت کې په لرگي وهي.

**گبین** (gabín) نر.م. عسل، گبینه، انگبین.

**گبین ژاوله** (gabinžā́wla) ښځ.م. موم، د شاتو پاتې شوني.

**گبین وږی** (gabinwáẓay) نر.م. د گبینو چک یا تمبکه، د گبینو گگ، گبین پیاڅه.

**گبینی** (gabínay) نر.م. و.گ. گبین وږی.

**گپ** (gap) نر.م. ۱) په وریځو کې لاره؛ ۲) توکه، گپه، گپ شپ، توکه ټکاله؛ ۳) غټه مړی.

**گپاگپ** (gapāgáp) نر.م. ژر ژر خوړنه.

**ګپاله** (gapā́la) ښځ.م. غټه مری خوړنه.

**ګپاوو** (gapāwū́) ص. نر.م. د هرې خبرې کوونکی، ګپي، کړتو.

**ګپړشپړ** (gapaṛšapáṛ) نر.م ګپړ سپړ، ګډې وډې خبرې، اپلتې.

**ګپن** (gapán) نر.م. یو ډول توپ.

**ګپندۍ** (gapandə́y) ښځ.م. یو ډول توپ.

**ګپڼ** (gapáṇ) نر.م. ۱) ناکاره؛ ۲) خوړین.

**ګپو** (gapū́) ص. نر.م. ۱) کړتو، قرتو، چې یوازې خبرې کوي؛ ۲) و.ګ. ګپي.

**ګپه** (gapá) ښځ.م. ۱) غټه مری؛ ۲) لنده خاوره؛ ۳) لوټه، چم؛ ٤) وروکی کمر؛ ٥) توکه ټکاله.

**ګپ ګپه** (gapgapá) ښځ.م. کنده، غونډاری، چم.

**ګپي** (gapí) ص. نر.م. ۱) ملنډي، مزاقي، توکي؛ ۲) جلب، ترسبری، ملونه، واګه؛ ۳) پېزوان، د مال د پوزې پېزوان، مار.

**ګپۍ** (gapáy) نر.م. ۱) کینې لاسی، چپی؛ ۲) هغه پړی چې د واګو پر ځای کارېږي.

**ګتاوه** (gatāwá) ښځ.م. اړداوه، بتاوه، د ښاروېو خوراکه چې له بوسو سره نوړې داني ګډې شي.

**ګتکه** (gatká) ښځ.م. ۱) هنر، مهارت؛ ۲) دوکه، چل؛ ۳) د چا د وژلو سلا؛ ٤) قلعې.

**ګتکه بازي** (gatkabāzí) ښځ.م. دوکه بازي، غولونه، دوکه کونه.

**ګتګتی** (gatgutáy) ص.نر.م. بدنام، سپک شوی.

**ګتکی** (gatkáy) نر.م. یو ډول توپ لوبه.

**ګتلکه** (gatláka) ښځ.م. ۱) پیغلتوب، ښایسته جلۍ؛ ۲) هغه جلۍ چې په بدو کې ورکول کېږي.

**ګتلۍ** (gatláy) ښځ.م. ۱) یو ډول پلن سپېره بوټی دی؛ ۲) یو ډول پنې یا موچنې دي.

**ګټي** (gaṭí) نر.م.ج. ۱) هغه زړوکی چې سینې په کې پټې وي؛ ۲) بوجګی.

**ګټ** (gaṭ) نر.م. ۱) غټ کاڼی، کنده، ګوسه؛ ۲) توره وریغ؛ ۳) د دېوال کنج؛ ۲) تر واده یوه یا دوه ورځې مخکې د جلۍ د پلار کره د ناستې ځای.

**ګټکی** (gaṭkáy) نر.م. ۱) و.ګ. ګټ؛ ۲) زړی، منډکه، د میوې تخم.

**ګټکۍ** (gaṭkáy) ښځ.م. ګیټۍ، جغل، واړه کاڼي.

**ګټل** (gaṭə́l) مص. مت. ۱) ګټه مونډل، ګټه کول؛ ۲) غچ اخیستل؛ ۳) په مقابله کې بریالي کېدل.

**ګټلۍ** (gaṭláy) ښځ.م. ګنده، غوټه، پنده کی.

**ګټندوی** (gaṭandóy) فا.نر.م. ګټه کوونکی، ګټمن.

**ګټن** (gaṭə́n) نر.م. و.ګ. ګټل.

**ګټنګوی** (ganṭangóy) فا.نر.م. غم خوار، فریاد رس، هغه څوک چې په بده ورځ لاس نیوی کوي.

**ګټنه** (gaṭə́na) ښځ.م. ګټه کول.

**ګټور** (gaṭawár) ص. نر.م. فایده من، مفید.

**ګټونکی** (gaṭū́nkay) نر.م. ۱) ګټندوی، ګټه کوونکی، بریالی، سوبمن.

**ګټه** (gáṭa) ښځ.ج. ۱) سود، نفع، حاصل؛ ۲) کاڼی؛ ۳) غټه ګوټه.

**ګټه** (gáṭa) ښځ.م. ۱) ګردنۍ؛ ۲) د لسو کارتوسو شمېره.

**ګټه من** (gaṭamə́n) ص. نر.م. ګټمن، ګټور.

**ګټه وټه** (gáṭawáṭa) ښځ.م. ګټه ختمه، ګټه پچه، نفع، فایده.

**ګټیالی** (gaṭyāláy) نر.م. و.ګ. ګټور؛ ګټونکی.

**ګټی رنګ** (gaṭayráng) نر.م. ۱) آسماني رنګ؛ ۲) د آبي رنګو سترګو خاوند.

• **گټير** (gațir) ص. نر.م. د غره کږلېچ، تاو راتاو.

**گټين** (gațin) نر.م. د گټو او تيږو ځای.

**گټينه** (gațina) ښځ.م. گټې لرونکې ځمکه، تيږنه ځمکه.

**گج** (gaj) نر.م. يو ساراني بوټی دی چې له وليو ښخه بې پرې جوړوي.

**گجات** (gajāt) نر.م. پاسو، شوم، بخيل.

**گجاتي** (gajāti) ښځ.م. بخيلي، شومتوب.

**گجره** (gajára) ښځ.م. (ج. گجرې) د ښځو د لاسونو د سرو يا سپينو زرو بنگړي، گجرې.

**گجرۍ** (gajrăy) ښځ.م. و گ. گجره.

**گج گول** (gajgól) نر.م. و گ. گچ وگول.

**گجوله** (gajawála) ښځ.م. يو ډول دوا ده چې له اوريشو نه جوړيږي.

**گجولۍ** (gajolăy) ښځ.م. کجۍ، کړه وړه.

**گجوی** (gajwáy) نر.م. د بوټو شيدې.

**گجوينه** (gajwína) ښځ.م. د اوريشو او د غنمو د گډو اوړو ډوډۍ، گډوله، ارگجه.

**گجه** (gajá) ښځ.م. ۱) د شفتالو زړی؛ ۲) د ببديو يو ډول لوبه، د گيټو لوبه.

**گچ** (gač) نر.م. ۱) سپينونه؛ ۲) ملهم؛ ۳) يو ډول سپينه معدني خاوره ده؛ ٤) د تگ په وخت کې له سينې سره د اوبو د مټ لگېدل.

**گچ بټۍ** (gačbațăy) ښځ.م. د گچ د پخولو بټۍ.

**گچگر** (gačgár) ص. نر.م. ۱) رنگو، ختگر، د گچ کار کوونکی؛ ۲) گلکار، معمار.

**گچل** (gačál) مص. مت. گچ ورکول، سپينول.

**گچ ځای** (gačjāy) نب. د گچ معدن.

**گچنه** (gačóna) ښځ.م. و گ. گچل.

**گچ وگول** (gačugól) نر.م. حيران دريان، اريان دريان، هېښ پېښ.

**گچول** (gačūl) ص. نر.م. آوارهٔ گرد، بې فايدې گرځېدونکی، وزگار، ولگرد.

**گځ** (gaj) نر.م. ميده شوی، ميده، ټکېدلی.

**گځاري** (gajāri) نر.ج. ۱) نسوار؛ ۲) گيزاری.

**گځموځی** (gajmūjay) ص. نر.م. گځموزی، هغه سړی چې د زړه راز چاته نه ښکاره کوي، گونگ.

**گځموزی** (gajmūzay) نر.م. د شړومبو پر سر هغه کوچ چې لا تول شوی نه وي.

**گڅ** (gac) نر.م. کيڼ، چپ.

**گڅه** (gacá) ښځ.م. گوسه، ډيکه، تهله، گسه.

**گڅه** (gáca) ښځ.م. د منځوۍ او کچې ترمنځ گوته، شلورمه گوته، لاکوکره.

**گڅی** (gácay) نر.م. کيڼ لاسی، چپی، چپ لاسی.

**گد** (gad) نر.م. سوال، خواست.

**گدا** (gadā) ص. نر.م. چړگر، سوالگر، درويزگر.

**گداتوب** (gadātób) نر.م. گدايي توب، ملنگي، سوال کونه، گداگري، گدايي.

**گداز** (godāz) نر.م. سوز، سول، ويلېدنه.

**گدام** (godām) نر.م. و گ. گودام.

**گدام دار** (godāmdār) ص. نر.م. د گدام واکدار، د گدام خاوند.

**گدانه** (gadāna) ص. ښځ.م. و گ. گدا.

**گدره** (godará) ښځ.م. لاړې، داگه، د ستک، برور.

**گدرۍ** (godrăy) ښځ.م. ۱) کندرې، د فقيرانو يو اوږد څادر دی؛ ۲) البم، البوم.

**گدگوډ** (gadgod) نر.م. ۱) الړزگرز، نوی زوړ؛ ۲) ډېگ شريک، گډ؛ ۳) مج. کس ناکس.

**گدله** (gadála) ښځ.م. کند، زړه جامه، گنځ.

**گدلۍ** (gadlăy) ښځ.م. کرتۍ، چينه.

**گدم** (gadám) نر.م. ۱) يو ډول دماغي ناروغي؛ ۲) د سکتې ناروغي؛ ۳) مېرگی.

**گدود** (gadū̃d) نر.ج. رسولي، غوټه، يو ډول غدود چې د ناروغی له امله پرسېږي او غټېږي.

**گدور** (gadū̃r) ص. نر.م. ټيټ، رذيل، پست.

**گده** (gadā́) ښځ.م. گدېلې، گدی، د حکومت يا پيرانو مسند.

**گدی** (gıdáy) ص. نر.م. کم عقل، نادان، ناپوه.

**گديکه** (gadíka) ښځ.م. د ځرخي لرگی چې تار پرې رېښل کېږي.

**گدېلې** (gadelé) ښځ.م. زړې او شلېدلې جامې، زړې او خيرنې جامې، گده.

**گدۍ** (gadə́y) ص. ښځ.م ۱) بد رگه او بد عمله ښځه؛ ۲) ښځ.م. مجلس، بنډار؛ ۲) تخت، مسند ۳) د توکر موړه چې د سنډا په شټ کې د رېږې د کشولو پر وخت اچول کېږي.

**گډ** (gad̤) نر.م ۱) مخلوط، شريک؛ ۲) پيل، شروع؛ ۳) مړ، پسه، غټ پسه.

**گډا** (gadā́) ښځ.م. ۱) نڅا، رقص؛ ۲) خوشحالي؛ ۲) لاسولونی، چلمچي.

**گډامی** (gadāmáy) ښځ.م. د ښځو او نرو گډه نڅا، گډه گډا، گډ اتڼ.

**گډاندی** (gadāndáy) نر.م. همخياله، همفکره، هماندی، همسوچه.

**گډاندې** (gadāndé) ښځ.م. همخيالې، همفکرې، هماندې، همسوچې.

**گډانديز** (gadāndíz) نر.م. همخيالانه، همفکرانه.

**گډبز** (gadbā́z) نر.م. ترپوزک، تمبوزک.

**گډبنه** (gadbaná) ښځ.م. شپونکی، گډبه.

**گډبول** (gadból) نر.م. گډگول، يو ډول تربوز بوټی دی، چې دانې يې د جوارو په اندازه دي.

**گډبون** (gadbū́n) نر.م. شپون، هغه چې رمه پيايي.

**گډبه** (gadbá) نر.م. گډې څروونکی، شپونکی.

**گډتوب** (gadtób) نر.م. سره گډېدنه، گډښت، گډون، گډه، گډتيا.

**گډر** (gadár) نر.م. کورنی سپی.

**گډری** (gadaráy) نر.م. کورنی چرگ، خسک چرگ.

**گډرک** (gadrák) نر.م. و گ. شاتېنگه.

**گډسوله يېز ژوند** (gadsolayízžwánd) نر.م. په سوله کې گډ ژوند، يو تربله د سولې ژوند.

**گډکه** (gadká) ښځ.م. تاپوره، تاپوره.

**گډکی** (gadkáy) نر.م. د کوچنيانو پای روک.

**گډگاډېر** (gadgādér) نر.م. گاډېره، گډگډېره، ارگجه، انجرېنجر، سره گډ کړی شوي.

**گډگډک** (gadgdák) نر.م. و گ. چينډری.

**گډگول** (gadgól) نر.م. ۱) و گ. گډبول؛ ۲) د يو تربو خوندي بوټي مېوه.

**گډل** (gadə́l) نر.م ۱) د شولو په پټي کې په غوايانو سره د منډاوو گرځول؛ ۲) په غوايي سره ختې پخول.

**گډله** (gadə́la) ښځ.م. گډلی، د اوربشو او غنمو له گډو اوړو څخه پخه شوې ډوډۍ.

**گډلی** (gadə́lay) نر.م. ۱) و گ. گډله؛ ۲) د جوارو ډوډۍ، سوکړک.

**گډلی اېښنونی** (gadə́laylíṣū́nay) نر.م. مرکب مسند (خبر)، ترېښتې کړ لرونکی خبر.

**گډندی** (gadandáy) ص. نر.م. نڅاگر، بازينگر، هغه چې گډېږي.

**گډنل** (gadnál) نر.م. لاس پلی، لانديس، د يوې ونې پلې چې د درملو په توگه کارېږي.

**گډو** (gadū́) نر.م. هغه چلم چې له بوټي يا کاغذ نه جوړ شوی وي.

**گډوالی** (gadwā́lay) نر.م. گډون، گډوډ کېدنه، گډه.

**گډوډ** (gadwád) نر.م. ۱) بې ترتيبه، بې طريقې؛ ۲) سره گډ؛ ۳) مج. وران، خراب؛ ٤) ناساز.

**ګډوډ توب** (gadwadtóh) نر.م. ۱) ګډوډوالی، بې ترتیبي: ۲) ګډون: ۳) ورانی: ٤) ارګجه توب.

**ګډوډول** (gadwadawə́l) نر.م. ۱) سره ګډول: ۲) خلط کول: ۳) وارخطا کول: ٤) بې ترتیبول: ۵) خرابول، ماتول: ٦) ارګجه کول.

**ګډوډه** (gadwáda) ص. ښځ.م. سره ګډ، ګډوله، ارګجه، ګډلی، کوک.

**ګډوډی** (gadóday) نر.م. ګاډولی، یو سپېره بوټی دی، چې وړې وړې دانې لري.

**ګډوډې** (gadwáde) نر.ج. و ګ. ګندکی.

**ګډوډېدل** (gadwadedə́l) مص.ل. ۱) ګډېدل، خلط کېدل: ۲) وارخطا کېدل: ۳) بې ترتیبه کېدل: ٤) خرابېدل، پرېشانه کېدل: ۵) ارګجه کېدل.

**ګډورکی** (gadúrkay) نر.م. ورکوټی ګډوری، ورکوټی ګډ، وری.

**ګډوری** (gadúray) نر.م ۱) وری، د مېږې نر بچی: ۲) جنګي وری.

**ګډوزی**(۱) (gadúzay) نر.م ۱) ګانډوزی، ګرېوزی، د خپور والي په حال کې د غټې او شهادت ګوتو د سرونو تر منځ فاصله، ګروزی: ۲) بالبنت، سروېړدی، تکیه.

**ګډوزی**(۲) (gadwázay) ص. نر.م. شریر، شر اچوونکی، پساتي.

**ګډوکی** (gadúkay) نر.م. ۱) یو ډول لوبه ده: ۲) اروړکی وری: ۳) بازینګر، نڅاګر.

**ګډول** (gadawə́l) مص.مت. ۱) رقصول: ۲) یو ځای کول: ۳) خپرول: ٤) تاوول: ۵) شاملول: ٦) شلول: ۷) محتاجول.

**ګډوله** (gadulá) ص. ښځ.م. له هر ډول غلې نه ګډه پخه شوې ډوډۍ

**ګډولی** (gadoláy) ص.نر.م. اپوته، اړولی، پرمخې.

**ګډون** (gadún) نر.م ۱) سره یو ځای کول، شریکول: ۲) اختلاط کول: ۳) شراکت کول.

**ګډونبیه** (gadūnbáya) ښځ.م. د ګډون نرخ، وجه اشتراک، حق الشمول، حق الاشتراک.

**ګډووي** (gaduwí) فا.نر.م. ځرخباني.

**ګډوه** (gadwá) ښځ.م. لوټکه، لوټه، مسي کوزه.

**ګډوی** (gádway) نر.م. اوږد غاړي کوزه، ګډوه، صراحي.

**ګډه** (gáda) ښځ.م ۱) مېږه: ۲) اشتراک: ۳) د مال لپاره بوس او شنه ګیاه سره ګډول: ٤) مشهوره، عامه: ۵) یو ځای، ګډ ګاډبړ.

**ګډه امی** (gadaāmáy) ښځ. د ښځو او نارینه ګډه نڅا او اتڼ.

**ګډه غونډله** (gadağwandla) ښځ.م. مرکبه جمله.

**ګډه ګډوله** (gadagadóla) ښځ. بې نظمي.

**ګډه وډه** (gadawáda) ښځ.م. ۱) سره ګډ: ۲) بې ترتیبي: ۳) وارخطا.

**ګډهل** (gadhál) نر.م. ۱) د اوبو لوی لوښی، سطل، بالتې: ۲) منګی، بوکه.

**ګډه هل** (gadahál) نب. د ځمکې کنده یا کوتې.

**ګډی** (gadáy) ص. ښځ.م. پلیته او زناکاره ښځه.

**ګډی** (gadáy) نر.م. ۱) مجلس، صحبت: ۲) مې: ۲) مخلوط النسله عالم.

**ګډی** (gadáy) نر.م. پسه، مې، ښکرور، جنګي ګډ.

**ګډې** (gadé) ښځ.ج. و ګ. ګډه ۱).

**ګډی خر** (gadayxár) ص. نر.م. نادان، کم عقل.

**ګډېدل** (gadedə́l) مص.ل. ۱) مخلوط کېدل: ۲) رقصېدل: ۳) په خبرو کې داخلېدل: ٤) په اوبو کې ګډېدل: ۵) شریکېدل

**ګډېر** (gadér) نر. ۱) اختلاط، مجلس: ۲) ګډون: ۳) شاتینګه.

**گډېره** (gadꞌerá) ښځ.م ۱) ګډون، غونډه، مجلس، ټولنه، جلسه؛ ۲) ارګجه.

**گډېری** (gadꞌeráy) نر.م. و ګ. ګړوبی.

**گډېله** (gadꞌéla) ښځ.م. ۱) ګډ، مخلوط؛ ۲) اله غنمو او نورو غلو نه ګډه پخه شوې ډوډی.

**گډېوه** (gadꞌewá) ښځ.م. ۱) لوټه، ګډوی؛ ۲) پیاله یا کنډول چې له منګي نه پرې اوبه څښل کېږي؛ ۳) کڅوره.

**گډي وډي** (gadꞌéwadꞌé) ښځ.ج. کاواکې خبرې.

**گذر** (guzár) نر.م. ۱) چسم، کوخه؛ ۲) ګودر؛ ۳) لاره.

**گذشت** (guzáśt) نر.م. ۱) زغم؛ ۲) حوصله، برد باري؛ ۳) مج. بخښنه، له یو شي نه تېرېدل.

**گر** (gar) نر.م. ۱) مصیبت؛ ۲) ظلم، جبر؛ ۳) غرۍ؛ ۴) خاربښت؛ ۵) چل، هنر؛ ۶) داو؛ ۷) لاحقه، لکه جادوګر؛ ۸) دجامو د څیرېدو آواز.

**گرا** (gará) نر.م. ۱) نوکر، مریی؛ ۲) ناپي؛ ۳) یو دول بېلچه، چاري؛ ۴) دېبړیو یو ډول لوبه.

**گراب** (garā́b) نر.م. تبق، دخارویو یوه ناروغي.

**گراتی** (garātáy) ښځ.م. یو ډول کرتی.

**گراته** (garā́ta) ښځ.م. (ج. ګراتې) څپیاکه، تپیاکه، ګراته، د څپیاکو ډېری.

**گراج** (garā́j) نر.م. ګراج، د موټرو د ودرولو کوټه.

**گراربی** (grārbáy) نر.م. غارکی، امبل.

**گراري** (garārí) نر.م. ګراري لرونکی.

**گراری** (garāráy) ښځ.م. غاښونه لرونکې ګاډېنی چې په ماشینونو کې ګرځولو کې کاریږي.

**گرام** (grā́m) نر.م. ۱) د وزن یو واحد؛ ۲) سېمه، استوګنځی، تاتوبی.

**گرامر** (grāmár) نر.م. ژبنی دستور، د ژبې قواعد وضوابط، د صرف و نحوې علم.

**گراموفون** (grāmufṹn) نر.م. یوه ماشیني آله ده چې له ریکارډ نه آواز باسي.

**گرامي** (grāmí) ص. نب. ۱) ګران بیه، ارزښتمن؛ ۲) قدرمن، عزتمن.

**گران** (grā́n) نر.م. ۱) مشکل؛ ۲) قیمتی؛ ۳) ص. محبوب، خوږ؛ ۴) مج. دروند.

**گران ومنلی** (grānu manálay) نر.م. ښاغلی او منلی، عزیز و ګرامي.

**گران بها** (grānbahā́) نب. ګران بیه، قیمت بها، ډېره قیمته، قیمتي.

**گران بیه** (grānbáya) نب. و ګ. ګران بها.

**گرانتوب** (grāntób) نر.م ۱) ګرانښت، ګرانوالی، ګرانښا؛ ۲) قیمتي؛ ۳) مشکل والی.

**گرانپلوری** (grānplóray) ص. نر.م. قیمته خرخوونکی، ګران خرخوونکی.

**گرانپلوري** (grānplorí) ښځ.م. ګران پلورنه، ګران خرخونه.

**گراندرملی** (grāndarmálay) نر.م. سخت درملی، صعب العلاج.

**گرانښت ومنښت** (grānáśt u manáśt) نر.م. محبوبیت و مقبولیت.

**گرانول** (grān awál) مص. مت. ۱) نرخ خېژول؛ ۲) خوښول؛ ۳) مشکلول؛ ۴) نایابول.

**گراني** (grāni) ښځ.م. قیمت لوړېدنه، نرخونه ډېرېدنه، نرخونه لوړېدنه.

**گرانېدل** (grānedál) مص. ل. بیه اوچتېدل؛ ۲) خوښېدل؛ ۳) مشکلېدل؛ ۴) نایابېدل.

**گراهه** (grāhá) ښځ.م. یو ډول بېلچه.

**گرايي** (grāyí) نر.م. خوځنده، یو پرخو.

**گرباده** (garbādá) ښځ.م. برېوکی، دېبریانو ډوڼی د باد چورلنډی.

گربړه ( garbāṛa ) ص. ښځ.م. شدیاره، غتي غتي لوټي لرونکي ځمکه.

گربشول ( garbašūl ) نر.م. بې نظم و بې ترتیب.

گربل ( garbíl ) نر.م. گرېبل، څیرې شوي جامې.

گربولی ( garbūlay ) نر.م. خراشکی، بلغم.

گربه خورک ( gurbaxorák ) نر.م. گربه خور، گلخوره.

گربېټ ( garbéṭ ) نر.م. سورسک، د جوارو ډډۍ.

گربېل ( garbél ) نر.م. سورۍ شوي جامې.

گربېنی ( garbenáy ) نر.م. ۱) د مچیو ځاله، د مچیو تمبکه؛ ۲) د ورو حشرو جاله.

گرپی ( garpáy ) نر.م. یو ډول بوټی دی.

گرټی ( gurṭáy ) نر.م. وگ. گورټی.

گرج ( graj ) نر.م. ۱) کینه، حسد، رخه؛ ۲) ص. کوږ، کروپ.

گرجمن ( grajmán ) ص. نر.م. رخه ور، کینه ور، حاسد، کینه ناک.

گرځ ( garǰ ) نر.م. دور، گرځېدنه.

گرځانده ( garǰāndá ) ص. ښځ.م. شـنده، وار گرځوونکي، هغه ښځینه حیوان چې تېر یـږي خو بلاربېږي نه.

گرځانه ( garǰāna ) ص.نر.م ۱) گرځنده، گرځېدونکی؛ ۲) چورلېدونکی، تاوېدونکی؛ ۳) سیلاني.

گرځبند ( garǰbánd ) نر.م. گرځبندي، د گرځېدنې بندېز، د گرځېدو قیودات.

گرځپلی ( garǰapálay ) ص.نر.م. ظلم ځپلی، اسکیرلی، مظلوم.

گرځند ( garǰánd ) ص. نر.م. وگ. گرځانه.

گرځندونی ( garǰandūnay ) ص.نر.م.وگ.گرځانه.

گرځندوی ( garǰandóy ) ص.نر.م. سـیلاني، سیلگری، سیاح.

گرځندویي ( garǰandoyí ) ښځ.م. سیلاني توب، سیلگري، سیاحت.

گرځنده ( garǰánda ) نر.م. ۱) وگ. گرځانه، سیار؛ ۲) هغه کوچنی چې نوی په گرځېدو راغلی وي.

گرځنده ټېلفون ( garǰándaṭelfún ) نر.م. گرځند لرغوږون، سیار تلیفون، موبایل.

گرځنده سینما ( garǰándasenamā́ ) ښځ.م. گرځېدونکی سینما، سیاره سینما.

گرځندی ( garǰandáy ) نر.م. ۱) ځرخ؛ ۲) کړلېچی، کړلېچ؛ ۳) د لوبو پر پرکی، بغندی.

گرځنی ( garǰanáy ) نر.م. ۱) کړلېچ، کړلېچی؛ ۲) گـردنی؛ ۳) کـنې، چـې بـوڼ پـرې غـري؛ ٤) چاښی چې وزغنې پرې غښتلي کېږي.

گرځول ( garǰawə́l ) مص. مت. ۱) حرکت ورکول، چکر ورکول؛ ۲) حقدار ثابتول؛ ۳) بل ته اړول؛ ٤) گرځون کول، قی کول.

گرځون ( garǰū́n ) نر.م. قی، کانگې، باقي.

گرځېدل ( garǰedə́l ) مص. ل. ۱) روانېدل، حرکت کول؛ ۲) سیل کـول؛ ۳) له ژبې اوړېدل؛ ٤) اړله پرېښول؛ ٥) د سر چورلېدل.

گرځېدونی ( garǰedū́nay ) نر.م. ستنېدونکی، بېرته گرځېدونکی، واپس کېدونکی.

گرځېنده ( garǰénda ) ص. نر.م. وگ. گرځانه.

گرد ( gard ) نر.م. ۱) ټـول، تمام؛ ۲) چاپېره.

گرد ( gard ) نر.م. ۱) گـرد، دوره؛ ۲) غونډی، گول؛ ۳) چیلم.

گرداب ( gardā́b ) نر.م. ۱) گرداو، د اوبو چکر، چورلندی؛ ۲) غولې، خارخوری، ښرخاو.

گرداړه ( gardā́ṛa ) ښځ.م. غونډاره، هغه غونداري چې کوچنیان پرې لوبې کوي.

گرداړی ( gardā́ṛay ) نر.م. وگ. گرداړه.

**گرداگرد** (gardāgárd) نر.م. ۱) له څلورو خواوو رابند، چاپېره؛ ۲) معمور، د ک.

**گردان** (gardán) نر.م. بیا بیا وینه، سبق تکرارونه، مشق و تمرین کول.

**گردانگ** (gardáng) نر.م. پلېتن، د جولا یوه آله.

**گردانول** (gardānawə́l) مص. مت. څو څلي سبق تکرارول، بیا تکرار کول، یادول.

**گردانېدل** (gardānedə́l) مص.ل. ۱) بیا بیا ویل کېدل، تاوېدل؛ ۲) دویم ځل ویل کېدل.

**گردباد** (gardbā́d) نر.م. بوربوړکی، دوړ دوړکه، هغه باد چې دوړې او خځلې له ځان سره الوځوي.

**گردسره** (gə́rdsara) نب. ټول، له څېرمې، بالکل.

**گردچاپېر** (gardčā́per) نر.م. تاوراتاو، کېرچاپېر، چاپېر.

**گردک** (gardák) نر.م. ۱) غونډ منډ، گردمرد، دایروي شکله؛ ۲) مج. تبر.

**گردکی** (gardakáy) نر.م. ۱) مج. وړوکی تبر، تبرگوټی؛ ۲) غونډمونډ، وړکی.

**گردگاړی** (gardgā́ṛay) نر.م. و گ. گرگاړی.

**گردلمی** (gardlámay) نر.م. یو ډول گردی بوټی دی، چې زېړ گل کوي.

**گردماچو** (gardmačú) نر.م. مازو، یوه سوربخونه مایع ده چې چینجي د څېرې ونه ژوبلوي او له هغې نه بهرراوځي.

**گردمه** (gardamá) ښځ.م. شپول.

**گردمېز** (gardméz) نر.م. گردی مېز، مدورمېز.

**گردی مېز** (gardayméz) نر.م. و گ. گردمېز.

**گردنی** (gardanáy) ښځ.م. ۱) نامزادگي، چغل بازي؛ ۲) له کوژدې نه وروسته د خسر کره د شو ورڅو لپاره د زوم دېره کېدنه؛ ۳) د کارتوسو پېټۍ، غاړکۍ؛ ٤) په ځټ باندې برب ورکونه.

**گردو** (gardū́) نر.م. د بوټو ایستلو تسکوره.

**گردول** (gardawə́l) مص. مت. غونډول، ټولول.

**گردومه** (gardūmá) ښځ.م. گردمه، شپول، دایروي کرښه چې تر سپوږمۍ راچاپېره شوې وي.

**گردون** (gardū́n) نر.م. ۱) آسمان څرخه، فلک گرزون؛ ۲) گرداو، چورلاندس.

**گردونه** (gardūná) ښځ.م. هغه ښځه چې د دوو کسانو پرې دعوا وي او د جگړې د مخنیوي لپاره یې بل دربمگړی په نکاح واخلي.

**گرده**[1] (gardá) ښځ.م. ۱) غوښتنه، سوال کونه؛ ۲) خام چرس، گرده؛ ۳) خاکه؛ ٤) گردی، شپول؛ ٥) یو ډول خمیره ډوډۍ؛ ٦) لاری، داگه، لوړ؛ ۷) کوټک، همسا.

**گرده**[2] (gurdá) ښځ.م. ۱) پښتورگی، بډوډی؛ ۲) مج. حوصله، همت، جرئت.

**گردی** (gardáy) نر.م ۱) مندری، پیشتکی، لندی؛ ۲) گردی، هاله، شپول؛ ۳) د پټون هډوکی.

**گردۍ** (gardə́y) ښځ.ج. د څرخې گاډینۍ چې تار زیات نه پرېږدي، چرمکی، بورک.

**گردۍ کنډوله** (gardəykanḍúla) ښځ.م. زنکې نار، د مولۍ په څېر یو نبات دی.

**گرړ** (garáṛ) ص.نر.م. هغه آس چې څلور واړه پښې او تندی یې سپین وي؛ باښ، سپلمی، سپلکی.

**گرړول** (garṛawə́l) مص. مت. ۱) رغړول؛ ۲) له یو شي نه په زوره آواز ویستل.

**گرړه** (garáṛa) ښځ.م. یو ډول غرنی نبات دی.

**گرړېدل** (garṛedə́l) مص.ل. ۱) له یو شي نه په زوره آواز راوتل؛ ۲) رغړېدل.

**گرړۍ** (garṛáy) ښځ.م. ۱) کند، کنداری، د ملنگانو جامې؛ ۲) نر.م. چیچکی؛ ۳) یو ډول مرغی ده؛ ٤) غونډمنډ، گردی.

**ګرړی** (garṛáy) ښځ.م. ۱) وګ. ګرګاړی؛ ۲) یو شین بوټی دی چې ګردی ګل کوي.

**ګرز**(۱) (garz) نر.م. ۱) امسا؛ ۲) خاوره، دوړه.

**ګرز**(۲) (gurz) نر.م. دوولس درځنه.

**ګرز**(۳) (gúraz) نر.م. د اوسپنې یوه درنه آله چې په جګړو کې کارېده.

**ګرزوهلی** (garzwahə́lay) ص. نر.م. سپېره، خړپړ، په خاورو او دوړو ککړ.

**ګرژول** (garaẓawə́l) ژګ. بګارول.

**ګرږل** (garaẓə́l) مص. مت. ۱) ګرول؛ ۲) تراشل، تورل، په نوکانو باندې تورل.

**ګرږه** (garáẓa) ښځ.م. ګرږی: ۱) خارښت، کهه، کهېښت؛ ۲) نوکاره، شوکاره.

**ګرست** (grast) نر.م. په بېل یا کودال باندې ځمکه نرمول یا ګور کونه.

**ګرستی** (grástay) نر.م. هغه یوم یا بېل چې ځمکه پرې اړول کېږي.

**ګرسره** (gársara) نب. ببخي له سره، قطعاً، بالکل چورلټ.

**ګرکڼه** (garkáṇa) ښځ.م. بې آزاره مچی چې د ځان لپاره د خاورو کورجوړوي، کولاله مچی.

**ګرکی** (gárkay) نر.م. د مېچنې ګرځولو آواز.

**ګرګ** (garg) نر.م. ۱) د حیواناتو یوه ناروغي، پم؛ ۲) یو بوټی چې ژېړ واړه ګلونه کوي؛ ۲) هغه چینجی چې د حیوان په ځیګر کې، د ګرګ د بوټي د خوړلو له امله پیدا کېږي.

**ګرګابی** (gargā́bay) ښځ.ج. یو ډول پنې یا موزې.

**ګرګاړی** (gargā́ṛay) نر.م. هر هغه غونډښی چې د رغړولو یا تاوولو وړ وي، ګردګاړی.

**ګرګاس** (gargā́s) نر.م. ۱) ګرګس، تتر، ځیګر؛ ۲) مج. د زړه سر؛ ۳) البونی غنم، یو ډول ګیاه ده.

**ګرګانی** (gargā́ṇay) نر.م. چم، غونداری، ګېه.

**ګرګټ** (gargáṭ) نر.م ۱) وګ. ګرګوټی؛ ۲) د اوبو د پېنې هډوکی؛ ۲) د کربوړي په شمېر یو رنګ بدلوونکې خزنده.

**ګرګټه** + (garguṭá) ص. ښځ.م. بوډۍ ښځه.

**ګرګچی** (gargačáy) ښځ.م.ج. د تاک یو وړه وچه کونده.

**ګرګر** (gargár) ص. نر.م. کوږ وږ، کوږ کوږ، کوپ کوپ.

**ګرګر** (gargár) نر.م. ظالم، تېری کوونکی، تېرغمال.

**ګرګري** (gargarí) ښځ.م. ظلم و تېری، زور زیاتی.

**ګرګرام** (gargarā́m) نر.م. ادرګېر، زور پور.

**ګرګره**(۱) (gargurá) ښځ. د ببري مېوه.

**ګرګره**(۲) (gargará) ښځ.م. ۱) تکبدلی متبر راړه؛ ۲) شنه تو خله.

**ګرګره**(۳) (girgirá) ښځ. م. ۱) د غنمو او ... دلده؛ ۲) نامنظمه شدیاره؛ ۳) وړوکې مېچن.

**ګرګ زړی** (gargzáṛay) نر.م. توقه، کندوسکی.

**ګرګل** (gargál) نر.م. خارښت، پم، کهه.

**ګرګله** (gargalá) ښځ.م. ګردله، ګردباد.

**ګرګنډه** (gargáṇḍa) ښځ.م. د لرګي دړه یا کونده.

**ګرګنه** (garganá) ښځ.م. د ګرګي حیوان ځیګر.

**ګرګو** (gargū́) نر.م. ۱) د ښځو یو راز ګډا؛ ۲) ښځ.م. انګازه، هنګامه؛ ۳) د پسونو یوه ناروغي.

**ګرګوښه** (gargū́ṣa) ښځ.م. ګورکنې، غسی ګورلټی، هغه ځناور چې مړي راوباسي.

**ګرګه** (gárga) ښځ.م. ۱) ګوسه، د ونې بېخ؛ ۲) غټ بش، شاتیر؛ ۳) مج. ص. نر.م. غټ پټ سړی.

**ګرګي** (gargí) ص. نر.م. ۱) پمن، خارښتي؛ ۲) پوخ روږدی یا عملي لکه د چرسو، شرابو او... ، کوږ عملي.

**گرگی** (gargáy) ښـځ.م. ج. ۱) کـوچنی گرگه؛ ۲) یو سپېره بې پانو بوټی.

**گرگی** (gárgay) نر.م. ۱) یو ډول لوبه؛ ۲) غـابنور، منداوو؛ ۳) د هډوکو تړل، استخوان بندي.

**گرلاټ** (garlā́ṭ) نر.م. کودنی، کودړه، کودوری، کودری، د مات خاورین لوښي ټوټه.

**گرلاڅه** (garlā́ca) ښځ.م. ترنگړه، ترنگړي، د مزرو کوری، غوندی، گرلڅه، گرلسه.

**گرلبی** (gárlabay) نر.م. خراشکی، بلغم.

**گرلټ** (garláṭ) نر.م. خربیلی سر، کټوخه.

**گرلڅه** (garlacá) ښځ.م. و گ. گرلاڅه.

**گرلنډ** (garlánḍ) ص. نر.م. ۱) غټ، خـورب سـړی؛ ۲) نر.م. د چورلېدو له امله سرگرځېدنه.

**گرلې** (garalé) ښځ.م. د ډال حلقه یا کړی.

**گرلۍ** (garláy) ښځ.م. ج. پېټنی، پنډ.

**گرم**(۱) (grám) نر.م. ملامت، پړ.

**گرم**(۲) (gárm) نـر.م. ۱) تود؛ ۲) مج. تېز، چټک؛ ۳) مج. مین، عاشق؛ ٤) ص. جذباتي.

**گرم**(۳) (garū́m) نر.م. ۱) غم، رنځ، نول؛ ۲) دماغي پرېشاني؛ ۳) د دق مرض؛ ٤) د ځینو ونو په ډډ کې غوټه، گروم، خنډ، رخت، وزغی.

**گرماگرم** (garmāgárm) ص. نر.م. ج. تېز، توده په توده، ډېر گرم چې زور او شور په کې وي.

**گرماله** (garmālá) ښـځ.م. خـټې موښې، گلماله، ختماله.

**گرمانه**(۱) (gramānā́) ښځ.م. (ـ گرماني) توغم، گناهکاره، جرمانه.

**[illegible]مانه**(۲) (g[illegible]mānā́) ښځ.م. گ[illegible]م دارو، تود شی

**[illegible]ماني** ([illegible]garmā[illegible]) ښځ.م. توغم[illegible]، [illegible]رماني گناهکاري.

**گرمتیا**(۱) (grámtyā) ښځ.م. ملامتیا، گرموالی.

**گرمتیا**(۲) (gármtyā) ښځ.م. تودوخه، گرموالی.

**گرمټ** (garmáṭ) نر.م. ۱) نهزه، د غشي څوکه؛ ۲) هغه آله چې یو سر یې درونده وي او فرش یا ځمکه پرې د کېندلو لپاره ټک وهلی شي، درمټ؛ ۲) د ترکانۍ مخصوصه برمه.

**گرمسېر** (garmsér) نـر.م. ۱) توده سیمه؛ ۲) هغه ښـوونځي چې په گـرمۍ کې رخصت وي.

**گرمکه** (garmáka) ښځ.م. گرم دانه.

**گرمل** (guramál) مص. مت. و گ. گرېل.

**گرملی** (gurmálay) نر.م. کوت، کُنجلک، کړت، گونجی، سرسري او گونجي گنډل شوي.

**گرمناک** (garmnā́k) ص. نر.م. تاوجن، تودوخه ورکوونکی، گرموال.

**گرمنه** (gurmána) نر.م. و گ. گرملی.

**گرموالی** (garmwā́lay) نر.م. تودوالی، تودوخه.

**گرمول**(۱) (gramawə́l) مص. مت. ملامته کول، پړ کول، پړ ثابتول.

**گرمول**(۲) (garmawə́l) مص. مـت. ۱) تـودول؛ ۲) تېزول، شوق ورکول؛ ۳) په غوسه کول.

**گرمه** (garmá) ص. ښځ.م. ۱) هغه ښځینه څاروی چې نر څاروی غواړي؛ ۲) نب. هغه مېوه چې ژر رسېږي؛ ۲) یو ډول ختکی، گرمک.

**گرمه گورمه** (garmagórma) ص. ښځ.م. گنه گونه.

**گرمي** (garmí) ښـځ.م. ۱) تـودوالی، تـودوخـه؛ ۲) غوسه، قهر؛ ۳) سوزاک، اتشک.

**گرمېدل**(۱) (gramedə́l) مص. ل. ملامت کېدل.

**گرمېدل**(۲) (garmedə́l) مـص. ل. ۱) تـودېدل؛ ۲) شوق [illegible]؛ ۳) غوسه [illegible]ل، بهربدل.

**گرمېل** ([illegible]) نر.م. شیر[illegible]، حامو.

**گرناټی** (garnāṭáy) ښـځ.م. ج. د [illegible] وچنیانو یوه لوبه ده.

**گرنټه** (garanṭa) ښځ.م. هغه بوټی چې د ښکلا لپاره کرل کېږي.

**گرنج** (granj) نر.م. ۱) گرنج، دپټيلو او لوښو آواز؛ ۲) یو ډول پلاو.

**گرنجاري** (granjāray) نر.م. گرنگهار، کرنگار.

**گرنجانی** (granjānáy) نر.م. جرس، گینگری.

**گرنغ** (granǧ) نر.م. په هوا کې د یو شي د تېرېدو غږ.

**گرند** (grand) نر.م. ۱) یوه غرنۍ اغزنه ونه ده؛ ۲) جغل، زنگال؛ ۳) دهندوانو مذهبي کتاب.

**گرندوکی** (garandūkay) نر.م. د آسونو د خرخره کولو آله.

**گرنده** (garandá) ښځ.م. مرغری، غدود، مروری.

**گرندی**(۱) (granday) نر.م. ۱) بخښنه، خلاصی، روغه سوله؛ ۲) د صحاف چوړکی.

**گرندی**(۱) (gıranday) نر.م. تویره، د ترکاڼ د سامان بوجگی.

**گرندی**(۲) (garanday) ص. نر.م. گرندی، تېز.

**گرنډه** (granḍá) ښځ.م. یوه هندوستانۍ مېوه چې اچار ورنه جوړېږي.

**گرڼی** (granáy) ښځ.م. د کوچنیانو یوه لوبه ده.

**گرو** (graw) نر.م. ۱) گانه، گېڼه؛ ۲) کفالت، قید؛ ۳) تړ، تړون، ناغه.

**گروبله** (grúbla) ښځ.م. گروبلی، بلغم، خراشکی.

**گروبی** (gruháy) نر.م. و گ. گروړبی.

**گروپ** (grūp) نر.م. ۱) تولی، ډله؛ ۲) غونډه.

**گروپی** (grūpay) نر.م. و گ. بگړی ۲).

**گروت** (garūt) نر.م. ۱) لاس ورکول؛ ۲) موتی، کوده، قوده.

**گروټی** (grūṭay) نر.م. پټیره دوډی.

**گروڅکی** (grūckay) نر.م. یو ډول داني چې مربا تري جوړېږي.

**گروړبی** (garurbay) نر.م. ۱) د سینې درد؛ ۲) بلغم، کروړبی، خراشکی، گروبی.

**گروزی** (grūzay) نر.م. و گ. کرېوزی.

**گروس** (grūs) نر.م. ځمکنی توت.

**گروشپیل** (grušcyál) مص.مت. و گ. بگارول.

**گرول** (garawál) مص. مت. ۱) نوکاري کول؛ ۲) پوستکي پرې کول، توږل؛ ۳) حاصلول.

**گرولی** (grūlay) نر.م. بلغم، خراشکی، کروړبی.

**گروم** (grūm) نر.م. ۱) خپگان، خواشیني، د زړه غوټه؛ ۲) خنډ، دونو په تنه کې غوټه.

**گرومجن** (grūmján) ص. نر.م. غمگین، پرېشان.

**گروونی** (garawūnay) نر.م. نوسی، یو سیخ دی چې له تناره نه وریاندي ډوډۍ راباسي.

**گروه**(۱) (gráwa) ښځ.م. ۱) د اوږې او څټ ترمنځ هډوکی؛ ۲) د کمیس کالر؛ ۳) تنې، بتهن، گلمخی، غینډی.

**گروه**(۲) (groh) نر.م ۱) دین، مذهب؛ ۲) تولی، ډله؛ ۳) قوم.

**گروه توپیر** (grohtawpír) نر.م. د عقایدو اختلاف، د عقایدو توپیر.

**گروهن** (grohán) نر.م. ۱) راغب؛ ۲) مهربان؛ ۳) له ظلم نه ترهه لرونکی.

**گروهنه** (grohána) ښځ.م. ۱) مهرباني؛ ۲) مینه؛ ۳) وېرېدنه؛ ٤) لورنه، پېرزوینه.

**گروهوڅی** (grohūcay) نر.م. گراڅه، لنده.

**گروهول** (grohawál) مص.مت ۱) پام راگرځول؛ ۲) له ظلم نه وېرول؛ ۳) عقیدتمن کول.

**گروهه** (gróha) ښځ.م. گروه، امنا، باور، عقیده، یقین.

**گروهه اوپوهه** (gróhaawpóha) ښځ.م. عقیده و علم، علم و عقیده.

**ګروهېدل** (grohedə́l) مص. ل ۱) متوجه کېدل؛ ۲) ورېدل؛ ۳) عقیدتمن کېدل.

**ګروهېز** (grohíz) نر.م. عقیدوي، اعتقادي، عقیده یي، ایماني.

**ګروې** (gráwe) ښځ.ج. ګرۍ، د اوږي او ښځ ترمنځ هډوکی.

**ګروی** (garwáy) نر.م. و ګ. زګېروی.

**ګروېږل** (grawezə́l) مص. مت. پوښتنه کول، لټون کول، غوښتنه کول.

**ګروېږن** (grawezə́n) نب. د ګوډي او ژي لپاره د حلال شوي مال د پوستکي ایستلو طریقه.

**ګروېږونی** (grawezúnay) نر.م. پلټونکی.

**ګرویلیک** (grawilík) نر.م. ګانه لیک، ګروي خط، ګانه خط.

**ګره** (gará) ښځ.م. په خاوروکې د ساتل شویو کنو ډېری.

**ګرهار** (garahár) نر.م. ګر، د جامو شلېدلو آواز.

**ګره بره** (garabára) ښځ.م. نانهوله، سرسري، لند تنک، سطحي.

**ګرهچ** (garhác) نر.م. ډوغل، کنده، ګرهوځ.

**ګرهو** (gárhū) ص. نب. زړه ماتوونکې خبرې.

**ګرۍ** (garáy) نر.م ۱) درمندګی؛ ۲) ص.نر.م. دارو، هغه څوک چې بې ډوله او راوتلي غاښونه ولري.

**ګري** (garí) نر.ج. د شولو هغه دانې چې په بوټي کې نیمې پخې شوې وي.

**ګرۍ** (gray) ښځ.م. د دروازې چوڼ یا لخک.

**ګریب** (grib) نر.م. د اوبو کوب یا بوکان، کویب.

**ګریټ** (griṭ) نر.م. هغه لویه ډوډۍ چې ګوره هم په کې اچول شوې وي.

**ګرېټۍ** (greṭáy) ښځ.م. د ګهلو مانو خبرې.

**ګرېدل** (garedə́l) مص. ل. ۱) کهه کېدل، خارښتېدل ۲) رژېدل، ګونجې کېدل؛ ۳) پوستکی لېرې کېدل؛ ٤) مج. حاصلېدل، یو شي بودېدل.

**ګریس** (gris) نر.م. یو ډول سرېښناکه غوړه ماده ده.

**ګرېښک** (greṣ̌k) نر.م. غته ګوته، کټه ګوته.

**ګرېګرکی** (gregárkay) نر.م. ګرېګرۍ، ږلۍ، له باران سره د واورې نرۍ نرۍ دانې وربدنه.

**ګرېله** (grelá) ښځ.م. توشکه، تولایي، نالی.

**ګرېن** (gren) نر.م. تخم، غلـه، دانـه، د یوې نیمې رتۍ وزن.

**ګرین**(۱) (grin) نر.م. سینه.

**ګرین**(۲) (garín) نر.م. مزی یا تار چې دوه یا درې واره غبنتل شوی یا تاو شوی وي.

**ګرینډۍ** (grinḍáy) ښځ.م.ج. کجـاوه، له لښتو نه جوړه شوې لویه کجاوه یا کارۍ.

**ګرېو** (grew) نر.م. ګروه، ګانه، رهن.

**ګرېوان** (grewā́n) نر.م. ګرېوه، ګهېږ، د کمیس هغه برخه چې په سینه پرته وي.

**ګریولی** (gríwlay) نر.م. خراشکی، بلغم.

**ګریوه** (griwá) ښځ.م. د تنې سورۍ.

**ګرېوه** (garewá) ښځ.م. وروکی غر، غرګوټی.

**ګرېیل** (gareyə́l) مص. مت. و ګ. ګرول.

**ګړ** (gaṛ) نر.م. ۱) کلا، قلا؛ ۲) د لاحقې په توګه د ظرفیت مانا ورکوي، د اوسېدو ځای؛ ۳) د ښځو د وېښتانو زرورق؛ ٤) لفظ، خبره، وینا، سپین، مورفیم، د ژبې ترټولو کوچنی مانیز یوون (واحد).

**ګړاواز** (gaṛāwā́z) نر.م. مورفو فونیم، صوتي اړیکه، صوتي رابطه، هغه اواز، چې د یوه ګړ د بېلا بېلو ځېلونو (بلګړونو) په لړ کې راځي

**ګړاواز پوهنه** (gaṛāwāzpohána) ښځ.م. د ژبپوهنې هغه څانګه چې ګړاوازونه څېړي.

**ګړاچي** (gṛācáy) ص. نر.م. و ګ. ګرچند.

**ګړاکو** (grākū) نر.م. ۱)د تماکو او زړي ګوړي مرکب چې په چلم کې شکل کېږي؛ ۲)همدغه چلم.

**ګړب** (grab) نر.م ۱)ګړپ، تېزي او تونده خبري؛ ۲)د دوو شیانو سره خپلو کې د لګېدو آواز؛ ۳)د موږکانو نیولو پنجره؛ ٤)غتېه سوره .

**ګړبا** (grabā) ښځ.م. ۱)تونده خبري؛ ۲)د دروازې یا نورو شیانو سره د لګېدو آواز.

**ګړباده** (garbādá) ښځ.م. بړبوکی، د بېړیانو دولی.

**ګړباوو** (grabāwū) ص. نب. کرتن، ډېرې خبرې کوونکی.

**ګړباوه** (grabāwá) ښځ.م. ۱)د اوبو د وتو ځای؛ ۲)کانیزه خمکه.

**ګړبړ** (garbár) نر.م ۱)د ګېډې قرېدو آواز، قرقر؛ ۲)مج. بې‌نظمي، ګډوډي؛ ۳) ګړبډنه؛ ٤)په اراده یا بیان کې توپیر راتلنه؛ ٥)وارخطايي.

**ګړب ګروب** (grabgrūb) نر.م. ۱)خبرې اترې؛ ۲)د دروازې د خلاصېدو او پورې کېدو آواز.

**ګړبن** (grabán) ص. نر.م. ګړبند، بې ځایه او چټې خبرې کوونکی، ګړبو، سرماغزن.

**ګړبند**(۱) (garabánd) ص.نر.م. ګړبن، قرتو، ترتو.

**ګړبند**(۲) (grabánd) ص. نر.م. ۱)زوړ، کم‌زوری، ضعیف، بوډا؛ ۲)ډېر استعمال شوی.

**ګړبنده** (grabanáda) ښځ.م. ۱)په غره کې لوی طبیعي غار؛ ۲)د غټو کانو او تیږو ځای.

**ګړبنۍ** (grabnáy) ښځ.م. کانیزه ځمکه.

**ګړبو** (grabū) ص. نب. و ګ. ګړباوو.

**ګړبوزه** (garbūza) نر.م. ړچهدنه، ړچ، ګرګوزه.

**ګړبوزی** (garbūzáy) نر.م. ۱)غزی؛ ۲)بالښت؛ ۳)ګورت، د دوګوتو ترمنځ فاصله.

**ګړبول** (grabawál) مص. مت. ۱) له دروازې نه آواز ویستل؛ ۲)له یو چا نه چټې خبرې ویستل؛

۳)په غوسه کول؛ ٤)زوړول، ډېر استعمالول.

**ګړبهار** (grabahār) ص. نر.م. ګړبار، د دوو شیانو سره خپلو کې د لګېدلو آواز.

**ګړبېدل** (grabedál) مص. ل. ۱) له یو شي نه آواز ختل؛ ۲)ډېر استعمالېدل؛ ۳)چټیات ویل ٤)غوسه کېدل؛ ٥)ځړيکې وهل.

**ګړبېزن** (garbezán) ص.نر.م. ګړبېزن، هغه سړی چې پوزه یې تل له ګند نه ډکه وي، خیرن، خچن.

**ګړپوهنیز** (garpohaníz) نر.م. مورفولوجیکي، ګړپوهیز.

**ګړپوهه** (garpóhá) ښځ.م. ګړپوهنه، مورفیم پوهنه، واژه شناسي.

**ګړچ** (grac̣) نر.م. ۱)تېزي او تونده خبرې؛ ۲)په لوښي کې د منځه د یو شي د ړچولو آواز.

**ګړچاوو** (grac̣āwū) ص.نر.م. ۱) هغه سړی چې زوم دخسر کور ته بیايي؛ ۲)تونده خبرې کوونکی.

**ګړچند** (grac̣ánd) نر.م. ړچن، ړق، هغه شی چې د ګرچ ګرچ آواز کوي.

**ګړچول** (grac̣awál) مص. مت. د خوځولو له امله د یو شي نه آواز پیدا کول.

**ګړچه** (grác̣a) ښځ.م. د خولې بحث.

**ګړچهار** (grac̣ahār) نر.م. د ګرچ ګرچ آواز.

**ګړچېدل** (grac̣edál) مص. ل. د خوځېدو په وجه له دروازې یا بل شي نه آواز پیدا کېدل.

**ګرد**(۱) (gard) نر.م. دوړه، ګرد.

**ګرد**(۲) (gard) ص. نر.م. ګردی سړی.

**ګرداګرد** (gardāgárd) ص. نر.م. ګرداګرد، شا وخوا، چپ چاپېر.

**ګردان** (gardān) نر.م. ۱)د غره لمن؛ ۲)د بتیارانو لوټکی؛ ۳) و ګ. ګردان.

**ګړدانول** (gaṛdānawə́l) مص.مت.وګ. ګردانول

**ګړداو** (gaṛdáw) نر.م. ۱) لوی سېلاب؛ ۲) اوبګرځنۍ، ګرداو.

**ګړدګاډی** (gaṛdgā́ḍay) نر.م. هر هغه غونډی شی چې غړولی یا تاوولی شي.

**ګړدود** (gaṛdód) نر.م. وینادود، لهجه، ډیالیکټ.

**ګړدوداطلس** (gaṛdōdatlás) نر.م. ګړدودي اطلس، لهجوي اطلس.

**ګړدودپوهنه** (gaṛdodpohə́na) ښځ.م. ګړدود پوهه، د ګړدود اړوند علم، لهجه پېژندنه.

**ګړدودي** (gaṛdodí) ښځ.م. د ګړدود اړوند، د لهجې اړوند.

**ګړدودي ځمکپوهنه** (gaṛdodiǰmakpohə́na) ښځ.م. لهجوي جغرافیه، لهجوي جغرافیا.

**ګړدوکی** (gaṛdū́kay) نر.م. د خیمې اړم، ګرده تخته چې په خیمه کې کارېږي.

**ګړدۍ** (gaṛdə́y) ص.ښځ.م. ۱) غونډه، حلقه، ګیر چاپېره، تاوراتاو؛ ۲) ښځ.م. څرخي چکر.

**ګړدی** (gaṛdáy) نر.م. ۱) تکی، چرمکی؛ ۲) ص. مندری، چیتکی، لنډی.

**ګړز** (gṛaz) نر.م. تېز او درووند آواز.

**ګړزا** (gṛazā́) ښځ.م. ګړزهار، ګړزار، ګړزګړوز، د دزو پرله پسې آواز.

**ګړزول** (gṛəzawə́l) مص. مت. ۱) له یو شي نه د ګړز ګړز آواز ویستل؛ ۲) ډزول، ډزې کول.

**ګړزېدل** (gṛazedə́l) مص. ل. ګړزګړوز کېدل، په پرله پسې توګه ډزې کېدل.

**ګړشپه** (gaṛšū́pa) ښځ.م. وګ. ګړشوپ.

**ګړګاډېر** (gaṛgāḍér) ص. نر.م. ګړګاډېره، هغه څه چې بل شی په کې ګډ شوی وي، ګاډېره.

**ګړګړ** (gaṛgáṛ) نر.م. د ګېډې یا د اوبو آواز.

**ګړګړو** (gaṛguṛú) نر.م. توړتوړو، ستونی، حلقوم، غړې، غړوی، د مرۍ سوری، حلق.

**ګړګړی** (gaṛgaṛáy) نر.م. چورلندی، څرخ.

**ګړګوتۍ** (gaṛgūtə́y) نر.ج. ګونځې، ګونجې، ګالګوتې، هغه وینبته چې تاوراتاو وي.

**ګړګور** (gaṛgū́r) نر.م. د آسمان ګړاری، ګړار، تنا.

**ګړګوزه** (gaṛgóza) ښځ.م. ګړبوزه، د تبې لړزه.

**ګړګۍ** (gaṛgə́y) ښځ. م. دایره، ګرد، ګردی.

**ګړماچی** (gaṛmā́čay) نر.م. وګ. ګړونج.

**ګړماګړ** (gáṛmā́gáṛ) نر.م. ډېر شور، شورځوږ.

**ګړماله** (gaṛmālá) ښځ.م. وګ. ګرماله.

**ګړمانج** (gaṛmā́ng) نر.م. مازو، ګړوانجو، د ښېرې د ونې غوټه.

**ګړمبهار** (gṛambahā́r) نر.م. ګړمبا، د توپ او بم د چاودنې پرله پسې آوازونه.

**ګړمچی** (gaṛamčáy) نر.م. وګ. ګړونج.

**ګړمن** (gaṛmán) ص.نر.م. شپه روني، بې خوبه.

**ګړن** (gaṛán) ص. نر.م. ۱) شپه روني؛ ۲) ستړی.

**ګړنپوهنه** (gṛanpohə́na) ښځ.م. غونډ پوهه، هغه څانګه چې له ګړنو څخه ګړېږي، اصطلاح پېژندنه، فقره پېژندنه.

**ګړنج** (gṛanǰ) نر.م. شرنګ، شړنګ، د تورو جنګېدو آواز.

**ګړنجانی** (gṛanjā́náy) نر.م. ګینګړی، جرس، ګړنجوونی.

**ګړنجول** (gṛanjawə́l) مص.مت. له تورو نه شرنګا ویستل، شرنګول.

**ګړنجار** (gṛanjahā́r) نر.م. د جرس د ټنګېدو پرله پسې آواز.

**ګړنجېدل** (gṛanjedə́l) مص. ل. د تورو جنګېدو له امله نرۍ شرنګ وتل، شرنګېدل، ګړنګېدل.

**ګړنجي کتار** (gṛanjaykatā́r) نر.م. د کوچنیانو یوه لوبه ده.

**ګړند** (gaṛánd) ص. نر.م. ۱) خوله ور، ژبور؛ ۲) مج. چالاک سړی؛ ۳) یوه اغزنه غرنۍ ونه ده.

**ګړندر** (gṛandár) نر.م. کرندر، شمېر، عدد.

**ګړندوالی** (gaṛandwā́lay) نر.م. خوله ورتوب، ژبور توب، په خبرو کې تېزوالی.

**ګړندی** (gṛandáy) ص. نر.م. ۱) چست و چالاک، تکړه، چابک؛ ۲) مج. رسېدلی مرشد.

**ګړندۍ** (gaṛandə́y) ښځ.م.ج. چرموښکی، چغوړکی، د کورونو یوه خزنده ده.

**ګړندي والی** (gṛandaywā́lay) نر.م. چستي، چالاکي، تېزي او تندي.

**ګړنګ**[1] (gaṛáng) نر.م. ۱) لویه کنده؛ ۲) په غره کې لویه کنده، د سیند لوی ژور ځای.

**ګړنګ**[2] (gṛang) نر.م. ۱) د پزې تېنګه مایع، کرمېزه، ګړینګ؛ ۲) مج. د سترګو اوبه.

**ګړنګن** (gṛangán) ص. نر.م. کرمېزن، ګړنګور، ګړنګوش، هغه څوک چې پوزه یې تل بهېږي.

**ګړنګین** (gaṛangín) ص. نر.م. لوړ، هسک.

**ګړنه** (gṛána) ښځ.م. هغه لغوي ګروپ چې یوه دریمګړې مانا ښندي، اصطلاح، محاوره.

**ګړنی** (gṛanáy) نر.م. ګړهاري، ویناییز، شفاهي.

**ګړنی ادب** (gṛanayadáb) نر.م. ګړهاري یا ویناییز ادب، شفاهي ادب.

**ګړنیز** (gṛaníz) نر.م. د ګړنې (اصطلاح، محاورې) اړوند، اصطلاحي، محاوروي.

**ګړو** (gaṛū́) نر.م. ګړاکو، چلم، چېلم.

**ګړوانجو** (gaṛwānjū́) نر.م.و.ګ. ګرمانج.

**ګړواز** (gaṛwā́z) ص. نر.م. ۱) ارت، وېېر، پراخ؛ ۲) سرلوڅی، سرخلاصی.

**ګړوب** (guṛū́b) نر.م. ۱) ګړب، په اوبو کې د یو شي د رالوېدو آواز؛ ۲) نرویه ختهه او نور شیان.

**ګړوبر** (gaṛubā́r) نر.م. ګړه بړه، خبرې اترې کونه.

**ګړوبن** (gaṛobán) ص. نر.م. بلغمي؛ هغه څوک چې په سینه یې بلغم پراته وي.

**ګړوبول** (gṛubawā́l) مص. مت. ۱) په یو ځل ورانول؛ ۲) بنوړول، خوځول، ښنډول.

**ګړوبی**[1] (guṛubáy) نر.م. ۱) د ګوړې شربت؛ ۲) ډېر خوږ شی.

**ګړوبی**[2] (gṛūbáy) نر.م. د سینې بلغم یا خراشکی.

**ګړوبی**[3] (gaṛubáy) نر.م. پس آو، هغه اوبه چې په پیاله کې تر ترلو وروسته بهاندې وي.

**ګړوبېدل** (gṛubedál) مص. ل. بنوړېدل، او په یو ځل ورانېدل.

**ګړوځه** (gaṛū́ja) ښځ.م. بې پیو او وچه غولانځه.

**ګړول** (gaṛawā́l) مص.مت. په خبرو راوستل، له چا نه خبرې راویستل.

**ګړونج** (gaṛwā́nj) نر.م. ګړونچی، ګړوچی، ګرماچې د منګي اېښودلو لپاره د لرګي کتکی.

**ګړونګه** (gaṛwā́nga) ښځ.م. جروبی.

**ګړوۍ** (gaṛwə́y) ښځ.م.ج. جیسرۍ، کوزنۍ، کوزګۍ، هغه لوښی چې لاستی لري.

**ګړوېزونه** (gaṛwezū́na) ګړ. ګړدودي ویېونه، واژهای ګویشي.

**ګړهار** (gaṛahā́r) نر.م.ج. ګړېړ، ګړوبړ، خبرې اترې، ګپ شپ.

**ګړهاري** (gaṛhā́rī) ښځ.م. ویناییز، ګړنی، شفاهي، محاوروي.

**ګړه بنده** (gaṛabánda) ښځ.م. په غره کې لویه سمڅه.

**ګړهل** (gaṛhál) نر.م. ۱) یو بوټی چې ښایسته ګل نیسي؛ ۲) دول، بالتی، متکی.

ګړی (garáy) نر.م. ۱) منګی؛ ۲) برج. شینګری، اباری، بورجل.

ګړی (garáy) ښځ.م.ج. ۱) ګهنته، ساعت؛ ۲) په سیند کې د بېر ژور ځای؛ ۳) زیمناك ځای.

ګړیال (garyā́l) نر.م. زنګ لرونکې د هوالي ګړی.

ګړیال برج (garyālbráj) ص.نر.م. ساعت واله برج، ګړی واله برج، هغه برج چې ساعت پکې ټینګ شوی وي.

ګړیالی (garyā́lay) نر.م. ساعت ښیونکی، هغه سړی چې د ساعت ښودلو وظیفه لري.

ګړی بند (garáybánd) نر.م. د ګړی بند یا تسمه، د ګړی زنځیر.

ګړیچ (griĉ) نر.م. سخته لاره، داسې لاره چې تګ راتګ پرې ګران وي.

ګړیچی (gariĉáy) ښځ.م. غوچاری، کوغالی، په څمکه کې د نیالګیو کینولو لپاره وره کنده.

ګړېدل (garedā́l) مص.ل. ۱) خبرې کول، ګړه بړه کول؛ ۲) ګرېدل، کرېدل.

ګړیز (garíz) نر.م. د ګړاړوند، د مورفیم اړوند، مورفیمیک.

ګړی ساز (garaysā́z) ص.نر.م. ګړی والا، ساعت ساز، ګړی جوړوونکی.

ګړی سازي (garaysā́zí) ښځ.م. د ساعت جوړوني کارخونه، ساعت جوړونه، ګړی رغښتنځای.

ګړی ستن (garaystán) ښځ.م. د ساعت ستن، عقربک.

ګړیستنه (garistána) ښځ.م. بهلنګ، آریوهه، اشتقاق و تصریف، فقه اللغة.

ګړی ګر (garaygár) ص.نر.م. ګړی ساز، ساعت ساز، ساعت جوړوونکی.

ګړېګینه (garegína) ښځ.م. د لم جزغالی.

ګړیل (garayā́l) مص.مت. د هواله ښخ سپړل د خوځولو لپاره.

ګړی ماتی (garaymā́tay) نر.م. د کوچنیانو یوه لوبه.

ګړینګ (gring) نر.م. و.ګ. ګرنګ[۲].

ګړینګی (gringáy) نر.م. جرس، وروکی ګونګرو.

ګړي وال (gariwā́l) ص.نر.م. هغه سړی چې په کتوو کې مستې د کلیو نه بازار ته د خرڅولو لپاره راوړي.

ګړی والا (garaywālā́) ص.نب. ساعت پلورونکی.

ګړی والا (garaywālā́) ص.نر.م. ۱) منګی خرڅوونکی؛ ۲) مج. کلال.

ګز (gaz) نر.م. ۱) د طول د اندازه کولو یو واحد دی؛ ۲) د توپک سیخ؛ ۳) و.ګ. غز؛ ٤) د لرګي یوه آله چې د اورو پېړه پرې د تبي پاسه اواروي؛ ٥) یو ډول غشی دی؛ ٦) دام. لومه.

ګزابی (gazābáy) ص.ښځ.م. بې عقله، لوره دنګه، کم عقله او کچه ښځه.

ګزار (guzā́r) نر.م. وهل، وار، ګوزار، ډب، درب.

ګزارش (guzārā́š) نر.م. ۱) عرض؛ ۲) بیان.

ګزارل (guzārā́l) مص.مت. ۱) ګوزارول، غوزارول؛ ۲) ادا کول، ترسره کول.

ګزارول (guzārawā́l) مص.مت. ۱) ګوزارول، غوزارول؛ ۲) څملول، په ځمکه راویشتل.

ګزاره (guzārá) ښځ.م. ګوزاره؛ ۱) ګزران، وخت اړونه؛ ۳) مج. زغم، حوصله.

ګزاري (gazārí) نر.ج. ۱) دخولې نسوار؛ ۲) ګیزاري د غنمو میده شوي وږي.

ګزارېدل (guzāredā́l) مص.ل. ګوزارېدل، غوزارېدل پرېوتل، ارتاوېدل.

**گزانه** (gazāná) ښځ.م. په گز، د گز په حساب.
**گزبره** (gazbára) ښځ.م. اعلی ورېښمين قناويز.
**گزبوټي** (gazbūṭi) نر.ج. دستک، لاري.
**گزک** (gazák) نر.م. ۱)د زخم پارسوب، د زخم اوبه پتونه؛ ۲)ص. پرسېدلی، نمجن، ملتهاب.
**گزک بوټی** (gazakbūṭay) نر.م. د بارتنګو بوټی.
**گزکه** (gazáka) ښځ.م. کوړکی، لومه، پړکه، د ورو مرغيو نيولو لپاره پړکه.
**گزگومبت** (gazgombát) ص. نر.م. ګډوډ، وران، ويجاړ.
**گزمه** (gazmá) ښځ.م. (ج. گزمې) د شپې گرځېدنه، پېره دار.
**گزول** (gazawə́l) مص.مت. ۱)گز کول؛ ۲)اندازه لګول؛ ۳)مج. غځول، خوړول، اوږدول.
**گژدنه** (gaždána) ښځ.م. تنفس، سا اخيستنه.
**گژوژ** (gažwáž) ص. نر.م. ګډوډ، کوږوړ.
**گژې** (gáže) ص.ج. کاږه، په ترغ، په ډډه.
**گژی** (gažáy) ص. نر.م. ۱)جوتې غوږي چې د قولبې يا گاڼې لپاره تيار شي؛ ۲)بلد، رضا.
**گړ** (gaṛ) ص.نر.م ۱)ګړوېښتی، د پاخه عمر خاوند؛ ۲)نيمه پخه شوې مېوه؛ ۳)يو ډول مرز؛ ۴)برګ، ابلق؛ ۶)مج. دوه مخی، منافق.
**گړوېښتی** (gaṛwiṣtáy) ص. نر.م. هغه څوک چې نيم ويښته يې تور او نيم سپين وي.
**گړوېښتي** (gaṛwiṣti) ص.نر.م: کره توب، د پاخه عمر خاوند توب.
**گړهار** (gaṛahā́r) نر.م. گړکی، د کلکو شيانو يو بل سره دلګېدو آواز.
**گړی** (gaṛáy) ص. نب. د نهيلي او مايوسۍ په حالت کې کاږه کاږه کتل.
**گس** (gas) ص. نر.م. کيڼ، چپ، کږ.

**گستاخ** (gustā́x) ص. نر.م. ناارامه، بې ادبه، بې شرمه، چاودينک، سپين سترګی، بې حيا.
**گستره** (gastára) ښځ.م. غوښکی، سخونډره، هغه غوښې چې پوره کهلو ته نږدې وي.
**گسکه** (gaská) ښځ.م. کتمل، منګوره، خسک.
**گسه** (gasá) ښځ.م. ۱)تهله، ډېچکه، ډيکه، تپل؛ ۲)نقصان ورکونه؛ ۳)هغه آله چې اوږد لاستی لري او ګوره پرې پخېږي.
**گسيا** (gasyā́) ص. ښځ.م. ۱)سوده، خالص؛ ۲)راکښلی شوی؛ ۳)سره نښتې، ورپورې.
**گشت** (gašt) نر.م ۱)چکر، دور؛ ۲)پېره، څوکۍ؛ ۳)سيل، گرځېدنه.
**گشتی** (gaštáy) ص. ښځ.م. ۱)شليته؛ ۲)مج. متيزه؛ ۳)آواره گرده.
**گښت** (gaṣt) نر.م. ۱)عمل، استعمال؛ ۲)سيل، دور، دوران.
**گفت** (guft) نر.م. ۱)خبره، وينا؛ ۲)مج. ازار، بنهرا، ګف.
**گک** (gak) نر.م. د تصغير علامه، لکه سترګک.
**گکړی** (gakṛáy) نر.م.جزغالی، کښکری، ززغاله، بوګری، سره کړې وازده.
**گگ** (gag) ص. نر.م. ۱)د سرو مچيو خاله؛ ۲)مج. د ځنېټي غتوالی؛ ۳)څپياکه؛ ۴)ډډ، دانچه.
**گگر** (gagár) نر.م. ۱)آهنګر؛ ۲)مضبوط، تکره.
**گگروزه** (gagrū́za) ښځ.م. ۱)رچ، رپ، رپې؛ ۲)د تبې لړزه.
**گگره(۱)** (gagára) ښځ.م. جغل، کانېزه شګه، هغه شګه چې واړه واړه کاڼي په کې وي.
**گگره(۲)** (gágra) ښځ.م. گاګره، سره نښتې تيږې.
**گگره(۳)** (gagra) ښځ.م. ۱) هغه اوږد کميس چې تنه يې واز وي؛ ۲)تتر، سينه.

ګګری (gagráy) نر.م. غوز، اکوړ، چارمغز.

ګګړ (gagúṛ) ص. نر.م. ګاګړ، زوړ، بوډا، بوډاغ.

ګګړوزه (gagṛū́za) ښځ.م. ګړبوزه، ګکروټه.

ګګړی (gagẓáy) نر.م. و ګ. ګکړی.

ګګو (gagū́) نر.م. روی، باګو، بګاولی، شیشکه.

ګګی (gagáy) ښځ.م. ځلی، سنی، سوتلی.

ګل[1] (gal) نر.م. غته غته ړلی، هغه ړلی چې غټې غټې دانې ولري.

ګل[2] (gwal) نر.م. ۱) جنډی، کوګی، سپرلی شوی غوټی؛ ۲) په بدن کې دداغ نښه ۳) خندق.

ګلاب (gwalā́b) نر.م. ګل ګلاب، یو ډول ګل دی.

ګلابتون (gwalabatū́n) نر.م.ج. زرتار، زرتاری.

ګلاب جامن (gwəlābjā́man) ص.نر.م.ج. یو ډول غونډی غونډی متابې.

ګلابوماتابو (gwalābū́mātābū́) نر.ج.د کوچنیانو یو ډول لوبه، میرغالی، میرغواله.

ګلابي (gwalābī́) ص. نر.م. ۱) نایي، دم، دلاک، سلماني؛ ۲) ګلاب رنګی، ګلاب ته ورته.

ګلاټه (gulā́ṭa) ښځ.م. و ګ. ګلاله.

ګلارګین (gulārgī́n) ص. نر.م. سخت، درشت.

ګلاله (gulālá) ښځ.م. ګلالی، کوتالی، ګلاټه، پخه شوې سره ببره.

ګلالی (gwalāláy) ص. نر.م. ښایسته، ښکلی.

ګل اندام (gwalandā́m) ص.نر.م. ۱) نرم و نازک بدن لرونکی؛ ۲) مج. معشوقه. محبوبه.

ګلانه (gulā́na) ښځ.م. هغه شی (پیسې) چې چاته د زېرې په راوړو ورکول کېږي.

ګلبارخو (gwalbārxū́) ص.نر.م. ګل مخی، ګلعذار، ګل رخسار.

ګل ببری (gwalbabrā́y) نر.م. د زنانه وو په ټیکر سو کې یو ډول ګلکاري.

ګلبخور (gwalbaxū́r) نر.م. ګلخوریه، سونګری، هغه بوټی چې د قوت باه د زیاتولو لپاره په چلم کې څکل کېږي.

ګلبدن (gwalbadán) ص. نر.م. ۱) نرم و نازک بدن لرونکی؛ ۲) مج. معشوق، محبوب؛

ګلبرګ (gwalbárg) نر.م. د ګل رنګینې پاڼې.

ګلبڼ (gwalbáṇ) نر.م. ګلباغ، د ګلو باغ، ګلستان، ګلزار.

ګلبوټی (gwalbū́ṭay) نر.م. د ګل بوټی، بته، ګل.

ګلپاڼه (gwalpā́ṇa) ښځ.م. د ګلو پاڼه، د ګل پاڼه، ګلبرګ.

ګل پانیزک (guwapā́ṇizák) نر.م. یو ډول سابه.

ګلپرخه (gwalpárxa) ښځ.م. پرګلپاڼه پرته پرخه، پرګلپاڼه شبنم.

ګلپرهر (gwalparhár) نر.م. د پرهار ګل (شاعرانه تخیل).

ګلپلور (gwalplór) ص.نر.م. ګل پلورونه، ګل خرڅونه، ګل فروشي.

ګلپلوری (gwalplóray) ص.نر.م. ګل خرڅوونکی، ګل پلورونکی، ګل فروش.

ګلپوش (gwalpáš) نر.م. مف. ۱) په ګلانو کې پټ شوی؛ ۲) مج. د ګلونو په څېر جامې اغوستی.

ګلپي (gwalpí) نر.م. ګوپي، یو ډول سابه دي.

ګل تنی (gwaltaṇáy) ښځ.م. د اسپې په غاړه کې تړل شوې پټی، پټاره یې هم بولي.

ګل توت (gwaltū́t) نر.م. د غټو پاڼو لرونکی هغه توت چې د کاغذ په جوړولو کې کار ترې اخلي.

ګلټ (gıláṭ) نر.م.ج. ۱) زېړ رنګ لرونکی فلز؛ ۲) د توپک ګېټ.

ګلټول (gılāṭawā́l) مص. مت. رنګول، په ګلټو ملمع کول، زرل، زرو بول.

**گلټي** (gıleṭí) ص. نب. د گلټ، گلټ ته منسوب.

**گلټپهل** (gılaṭpáhl) مص.ل. په گلټو باندې پوښل ملمع کېدل.

**گل جړی** (gwaljaṛáy) بنځ.ج. گل ځړی، نيهه، ځړی، نيهانه، نيهکه، کهاړه، گل ځړی.

**گلچ** (gıláč) نر.م. توبره، خورځي، خورجين.

**گلچين** (gwalčín) ص. نر.م. ۱) کوکي ځاني، گل ځان، څوک چې گلان ټولوي؛ ۲) مج. باغوان.

**گلځاند** (gwalčánd) ص.نر.م. (ج. گلځاندي) گل ځانی، گل ځاندی، گلچين.

**گلځاندي** (gwalčándí) بنځ.م. گل اوننه، گل اونون، گلچينې.

**گل ځانی** (gwalčāṇáy) ص.نر.م. وگ. گلځاند.

**گل څېر** (gwalčér) ص. نر.م. گلچهره.

**گلخونه** (gwalxúna) ص. بنځ.م. د گلونو ساتلو ځای، کوکي خونه.

**گلخرينگه** (gwalxarínga) بنځ.م. مينا، بنارو، بناروني؛ يوه مرغۍ ده چې زر روږدې کېږي.

**گلخوره** (gwalxurá) بنځ.م. وگ. گلبخوره.

**گلخۍ** (gwalxáy) بنځ.م. دارو، يو نغری چې کوچنيان په کې گازري پخوي.

**گلخينگی** (gwalxíngay) نر.م. يو تريخ بوټی چې ښين گل لري.

**گلداني** (gwaldānáy) بنځ.م. گلنی، د گلو د ايښودلو کلالي لوښی.

**گلدوز** (gwaldúz) فا.نر.م. هغه څوک چې په توکرانو کې گلان گنډي.

**گلډ** (glaḍ) نر.م. خړيلی سر، بې وېښتو سر.

**گل داگ** (gwaldág) نر.م. گل دښت، گلميره، گل بيابان.

**گلډانگ** (gwaldáng) نر.م. يو ډول سپی.

**گل راني** (gwalrāṇáy) بنځ.م. کمبلی، بابکی، بمبيرکه، يو ډول الوتونکی حشره ده.

**گلرخ** (gwalrúx) ص.نر.م. گلالی، پرې مخی، گلرو، گل مخی، د گل په څېر مخ لرونکی.

**گلزار** (gwalzár) نر.م. ۱) د گلونو ځای، د گلشن، کوکيانه؛ ۲) مج. باغ، گلستان.

**گل زويه** (gwalzoyá) بنځ.م. دغره چای، سمسوک، يو ډول گل دی چې د چايو پر ځای کارېږي.

**گل زېری** (gwalzeráy) بنځ.م. وگ. گلجړی.

**گلزلی** (galzaláy) بنځ.م. گل (gal) هغه غټه ږلۍ چې فصلونه خرابوي.

**گلساز** (gwalsáz) ص.نر.م. خپلاسي (مصنوعي) گل جوړوونکی.

**گلسرين** (galısrín) نر.م. يو ډول مايع غوړ دارو.

**گلسيمه** (gwalsíma) بنځ.م. د گلو سيمه، د گلو منطقه، ساحه، گل.

**گلشک** (gwalšák) نر.م. گلاشک، يو ډول غرنی گل دی چې بنفش رنگ لري.

**گلعذار** (gwalʿuzā́r) ص. نر.م. ۱) د گل په څېر رخسار لرونکی؛ ۲) مج. معشوق، گل غوټی.

**گل غوټی** (gwalğuṭáy) بنځ.م. گل مونگره، ناغوړېدلی گل، منجره، پنجره.

**گل غونچه** (gwalğwančá) بنځ.م. گلموبنته، گلغنچه، گل گېډی، د گلو گېډی.

**گلفام** (gwalfám) ص. نر.م. گلفم، تنگه خوله؛ ۲) مج. مشعوق، محبوب.

**گلقند** (gwalqánd) نر.م. گل کند، يو رلز دارو دی چې د گلابو له گل څخه جوړېږي.

**گلکار** (gılkár) ص. نر.م. ختگر، معمار.

**گل کاري** (gwalkārí) ص. بنځ.م. په جامو او کې د گلانو او بوټو نقشې جوړولو کار.

**ګلکاري** (gulkārí) ص. ښـځ.م. د ختو او تيږو يا خښتو د ېوال جوړونه، معماري، خټګري.

**ګل کټ** (gwalkáṭ) نر.م. ګل ورشو، ګل لرونکې کټ.

**ګلکڅونه** (gwalkacū́na) نر.ج. د ګلـونو کڅونه، د ګلونو ورشوګانې.

**ګل کر** (gwalkár) نر.م. د ګلو کر، ګل کرنه.

**ګل کنکړ** (gwalkankáṛ) نر.م. ګل ډنډر، بندک.

**ګلګنډ** (gwalgánḍ) نـر.م. ګل ګنډنه، سکوينه، ګل دوزي.

**ګلګنډنه** (gwalganḍána) ښځ.م. و ګ. ګلګنډ.

**ګلګون** (gwalgū́n) ص. نـر.م. ۱) د ګل په شان، ګلرنګ؛ ۲) مج. سور رنګ.

**ګلګی** (gulagáy) نر.م. د غوا وروکی خوسکی.

**ګل ګېډۍ** (gwalgeḍáy) ښځ.م.ج. ګلدسته، ګل غونچه، د ګلونو ګېډۍ.

**ګل ګل** (galgál) نر.م ۱) کلکل، غرتو، تټو، غرتن؛ ۲) د نارنج په شان يوه مېوه.

**ګل ګوټي** (galgúṭí) ص.نر.ج. و ګ. ګارګوټي.

**ګل ګوټو** (gwalgūṭú) نـر.م. ۱) د خـاروېـو د مرۍ بندېدو يوه ناروغي؛ ۲) مج. د مرۍ غوټه.

**ګل لښته** (gwallaṣ̌tá) ښـځ.م. د ګلـو لښته، د ګل څانګه، شاخچه، ګل.

**ګلماخۍ** (gwalmāxáy) ښـځ.م. ۱) د سپينو زرو يوه ښـځينه ګاڼه؛ ۲) يو ډول بوټی دی.

**ګلماله** (gilmālá) ښځ.م. ختموښې، ختماله.

**ګلمخې** (gulmáxe) ص. ښځ.م.ج. د ګل غونډې مخ لرونکې، ګلرخه، ګلرو.

**ګل مر** (gwalmár) نر.م. کافرګل، نمرګلـ

**ګلمل** (galmál) نـر.م. ککـړ، ليت پيت وينو او نورو شيانو ککړ، لړلی.

**ګلملتوب** (galmaltób) نر.م.

**ګلملول** (galmalawə́l) مص. مت. ککړول، په ختو، وينو او نورو شيان ليت پيتول.

**ګلملېدل** (galmaledə́l) مص.ل. ککړېدل، ليت پيتېدل.

**ګل موښته** (gwalmuṣ̌tá) ښځ.م. ګل ګېډۍ، ګل غونچه.

**ګل مونګره** (gwalmūngrá) ښـځ.م. ګل غـوټۍ، خوغاره.

**ګلميا** (gulmyā́) ښځ.م. د کباڼو د جـال هغه خانې چې رسۍ په کې اچول کېږي.

**ګل مېخ** (gwalméx) نـر.م. غټ سری مېخ، ګل مېخې.

**ګل مېخۍ** (gulmexáy) ښځ.م.ج. د سپينو زرو يو ډول پسول دی چې په لستونو کې يې ټک وهي.

**ګلنار** (gwalnā́r) نر.م. ۱) د انار ګل؛ ۲) سـوررنګ لرونکی؛ ۳) نرګس ته ورته؛ ٤) يـوه بې مېوې ونه چې د انار په شـان ده.

**ګلنډوری** (glanḍū́ray) نر.م. مرچ، سورمرچکی.

**ګلو**[1] (gulū́) نـر.م. هغه لرګی چې د ژرنـدې تيـر له پل سره ټينګوي.

**ګلو**[2] (galū́) نـر.م. ۱) تـوکـه، شـتـی، ټـانـټـه؛ ۲) د کيوري ګل؛ ۳) ډومبکی، ټمبکه، پياځې، د ګبين ورۍ.

**ګلواره** (galwārá) ښځ.م. د آس ځولۍ، خورجين.

**ګلوانه** (gulwā́na) نر.م. د شـومړو د کڅـوړې د راځورندولو تناب.

**ګلوبند** (gulūbánd) نر.م. ۱) غاړه کی، يوه ښځينه ګاڼه ده؛ ۲) د غاړې دسمال.

**ګلوټ** (galwáṭ) نر.م. د غوښې ټوټه.

**ګلوټه** (galuṭá) ص. ښځ.م. ۱) د غوښې يا د ختو غټه ټوټه؛ ۲) غټه مرۍ، غټ کپ، خمڅه.

**گل ورشو** (gwalwarṡó) ښـځ.م. د گلـو ورشـو، گلـبمه، بېشه، گل.

**گلورین** (gulwarín) نـر.م. گل وروونـکـی، گل نولونکی، گل باران، گلرېز.

**گلوږمه** (gwalwáẓma) ښـځ.م. گلـرنگه، گل ته ورته، گل غوندې، گلفام.

**گلوږم** (gwalwáẓam) نر.م. گل بوی، د گل بوی.

**گلوښته** (galúṣta) ښځ.م. متروکه، قمچینه.

**گلول** (gwalawə́l) مص. مت ۱) اور مر کول؛ ۲) مج. زغمل، تحمل کول.

**گلوله** (galulá) ښځ.م ۱) ووړکی غونداری، گیتی؛ ۲) گلگله، پکړوه؛ ۳) گولۍ، کارتوس.

**گل وله** (gwalwála) ښځ.م. د گلونو والا وله، گل بید.

**گلوه** (galwá) ص. نـر.م. ۱) یو ډول مرز چې توره یا سـره غـاړه لـري؛ ۲) ص. ښـځ.م. د غـوایي د خرمنې شا وخوا چې گنډل شوې وي.

**گله** (galá) ښځ.م. رمه، پاده، کندک، گورم.

**گله بان** (galabā́n) ص.نر.م ۱) شپون، شپونکی؛ ۲) پاده وان، ساروان؛ ۳) اسپون، اسپه.

**گله گله** (gálagála) د مرزانو د نیولو لپاره آواز.

**گله گرگی** (galagárgay) نر.ج. گگرگی، د واوري ورې ورې دانې چې د ډلی غوندې ورېږي.

**گلی** (galə́y) ښځ.م ۱) ډلی؛ ۲) د کوچنیانو یوه لوبه.

**گلی** (guláy) نـر.م. ام الصبیان، د کـوچنیانو یوه ناروغي ده.

**گلي** (gulí) ص. یو ډول سره منه.

**گلې** (galé) ښـځ.ج. یوه ناروغي ده چې په مـرۍ کې غوټې پیدا کېږي.

**گلیا** (galyā́) ص.نب ۱) ډېر پوخ، خوړین؛ ۲) وېلې شوې؛ ۳) ډنگر، لاغر، خوار.

**گلیخار** (gulixā́r) نـر.م. یو ډول سره درمل چې د سترگو او خولې پخېدو لپاره کارېږي.

**گلېتی** (galotáy) ص. نر.م. یو ډول توپک و.

**گلېدل** (galedə́l) مص. ل. ۱) ډنگرېدل، خـوارېدل؛ ۲) وېلې کېدل.

**گلېډنډه** (galeḍánda) نر.م. ډنډه گولی، شوتی ډنډی، کیچ ډنډی، د کوچنیانو یوه لوبه.

**گلېگه** (galegá) ښځ.م. شودیاره شوې ځمکه.

**گلیم** (glím) نر.م. نمر، خټبی، کمبلۍ.

**گلیون** (gwalyū́n) نر.م. د گلو سیال، په گلونو کې گرځېدنه، گل ننداره، گلگشت.

**گم**[1] (gam) نـر.م. ج. ۱) سرېښ، څلېښ، سرېښ؛ ۲) اوری، د غابښونو ښخ پوښونکې غوښه.

**گم**[2] (gum) ص. نر.م. ۱) ورک، غایب؛ ۲) ضایع، توی؛ ۳) ناپیدا؛ ٤) مج. پرېشان، وارخطا.

**گمارل** (gumārə́l) مص. مت. ۱) گـومـارل، امر کول؛ ۲) مقررول، سپارل؛ ۳) پارول، پاڅول؛ ٤) انگېدل، ننگېدل.

**گمارونی** (gumārū́nay) ص. نر.م. ۱) مشر، د سر سړی؛ ۲) لارښوودونکی.

**گمان** (gumā́n) نر.م. و گ. گومان.

**گمبش** (gambū́š) ص.نر.م. دلویو پښو یا پنجو خاوند.

**گمبزی** (gambízay) نر.م. نارنج.

**گمبېزی سـورن** (gambézaysurán) نـر.م. نارنجي کونگ او مست اس.

**گمبله** (gambelá) ښـځ.م. کـمبېله، گـومبېله، یوناني دوا ده چې شاړ یو ته ورکول کېږي.

**گمراه**[1] (gumrā́) نر.ج ۱) بې لارې، بې ورېدلی؛ ۲) مج. بې دینه؛ ۳) اوړېدلی، بې لارې.

**گمرک** (gumrák) نر.م. هغه دولتي اداره چې له سرحد نه د مالونو د صادرولو او واردولو مالیه

او محصول اخلي.

**گمند** (gamánd) ص. نر.م. گمنده، چاغ سړی.

**گمه** (gamá) ښځ.م. وړوکی لښتی چې د مرغیو نیولو دام په کې ږدي.

**گمیزه** (gamíza) ښځ.م. و ګ. گومېته.

**گن** (gan) نر.م. ۱) عادت، خوی؛ ۲) ښه والی؛ ۳) جوهر، هنر؛ ٤) غوزه، د اوښانو او غوایانو غټ منکور.

**گناه** (gunāh) ښځ.نر.م. ۱) وبال، بدکار، بد عمل، جرم، خطا؛ ۲) نافرماني.

**گناهکار** (gunāhkār) ص.نر.م. د خدای گناهکار، مجرم، بدکاری، گناهگار.

**گنانگول** (gunāngúl) نر.م. غرنی پالک، شلخی.

**گنایي** (ganāyí) ښځ.م. دژرندې آبخانه، لمخانه، د ژرندې تر کوټې لاندې د اوبو د تېرېدلو ځای.

**گنترې** (gantráy) نر.م. گنتی، گېنتی، کو لنگ.

**گنته** (gantá) ښځ.م. گونته، گنتی.

**گنتی** (gantáy) ص. نر.م. لنډی، منډی، چیتکی، ټیټکی سړی، منډری.

**گلتی** (gal táy) ښځ.م. غرنی بوټی دی چې بېخ یې د کالو پرېمینځلو لپاره کارېږي.

**گنټه** (ganṭá) ښځ.م. شپېته دقیقې، یو ساعت.

**گنټی** (ganṭáy) ښځ.م. گنته، گنترې، یو ډول کوداله چې سخته ځمکه پرې کنستل کېږي.

**گنج** (ganj) نر.م. ۱) خزانه، گنجینه؛ ۲) زېرمه، گودام؛ ۳) د مېوې راغونډولو شکرې؛ ٤) د سر وېښته نه کېدل، گنجیتوب.

**گنجایش** (gunjāyáš) نر.م. ۱) ځای پېدنه، ځای؛ ۲) مج. فایده، بچت.

**گنجپور** (ganjpūr) نر.م. کونی کبر، چنگابی، کونی‌کاتر.

**گنجرخی** (ganjarxáy) نر.م. دورخونو موږی چې په ورخونو کې د اوبو د وېشلو لرگی.

**گنجره** (ganjrá) ښځ.م. غازه، سرخي، پوډر.

**گنجلک** (gunjulúk) نر.م. و ګ. گونجلک.

**گنجور** (ganjūr) ص.نر.م ۱) خزانه؛ ۲) خزانه دار.

**گنجی** (ganjáy) ص. نر.م. ۱) پیک، لښتیا؛ ۲) د جوارو هغه وږی چې یو څو دانې په کې وي.

**گنجۍ** (ganjáy) نر.م ۱) جاکټ، بنیان؛ ۲) غونډاری، د سنیو غونډاری؛ ۳) ښځ.م. ج. ټپوس غونډې یو مردار خور مرغه.

**گنجینه** (ganjína) ښځ.م. خزانه، مخزن، زېرمه.

**گنچه** (gancá) ښځ.م. گنځه، غوړي مست، یو ډول خودرویه خوشبویه بوټی دی.

**گنځي** (gunjé) ص. ښځ. م. ج. و ګ. گونجه.

**گنځپه** (ganjāpá) ښځ.م. ۱) گنځپه؛ یو ډول گیډره ده؛ ۲) نولی.

**گنځه** (ganjá) ښځ.م. خنځه، خنځه گوتهٔ.

**گند**(۱) (gand) نر.م. ۱) خځلې؛ ۲) چټلي، ناپاکي؛ ۳) مج. بدبويي؛ ٤) خوسا.

**گند**(۲) (gand) اد. گونډې، گنې، گڼه، گنې.

**گنداو** (gandáw) نر.م. ولاړې اوبه، ولاړې خوسا شوې اوبه.

**گندبلا** (gandbalā) ښځ.م. ناولتیا، بېکاره او معمولي شی.

**گندڅېره** (gandcéra) ښځ.م. ځابنکه، ځارکه، شامتوره، یو ډول توره مرغۍ ده.

**گندک** (gandák) نر.م. گوگړ، گندهک، گېگړ، یو ډول کېمیاوي معدني سلفر.

**گندکه** (gandaká) ښځ.م. د بېدې یا سپینستې یو ډول لوبه چې (سه بجل) یې هم بولي.

**گندگي** (gandagí) ښځ.م. ناولی څیز، خوسا شی.

**ګندنه** (gandaná) ښځ.م. اوکی، کوکی.

**ګنده**(ganda) ص. ښځ.م. ۱) ناپاک، ناولی، پلید؛ ۲) بدکردار، شریر؛ ۳) زړه خرقه، د ملنګانو کنډ؛ ٤) هغه غله چې نايي يا استاکار يې د کال په پای له خلکو نه اخلي.

**ګنده بوټی** (gandabū́ṭay) نر.م. يو ډول تريخ، خودرويه بوټی دی.

**ګندړی** (gandaṛáy) نر.م. يو غرنی بوټی دی چې بدبوی لري او ګنده فېروزه ورته لاس ته راځي.

**ګنده خر** (gandaxár) نر.م. ګنده خری، نېزوری، هغه خځلي چې سېلاوله ځان سره راوړي وي.

**ګنده خره** (gandaxára) ص. ښځ.م. ناولې، چټله.

**ګنده لېوه** (gandálewa) نر.م. سرکوزی، خنزير، سور، بدځناور، يېي.

**ګنده مار** (gandamā́r) نر.م. ۱) زوويل، زاويل، خول؛ ۲) ګندګير، کوچکر، لاګ ساک.

**ګنده نل** (gandanál) نر.م. دورمه، کرکی.

**ګنده هوږه** (gandahū́ẓa) ښځ.م. ګندنه.

**ګندېر** (gandér) نر.م. و ګ. ګنډېری.

**ګندېرخر** (gandercár) نر.م. ګندېرچر، ګندېری، زهربوټی، ګنده خر.

**ګنډ** (ganḍ) نر.م ۱) ګينده، جوړښت سکوی، تکی؛ ۲) ډول، هغه ټوټه چې د ګرېوانه لاندې ګنډل کېږي؛ ۳) پاموره.

**ګنډاسه**(ganḍā́sa) ښځ.م. درنه چاړه، توکيا، توکه.

**ګنډڅېره** (ganḍcerá) ښځ.م. څابنکه.

**ګنډکپ** (ganḍkáp) ص.نر.م. ګڼ ګپ، دوکه باز، کيسه بر، جېبونه وهونکی.

**ګنډګين** (ganḍgín) ص.نر.م. نخي، سپنسين.

**ګنډل** (ganḍál) مص. مت. تکوهل، بخيې تېرول، سره يو کول (په ستن ياد خياطي په ماشين).

**ګنډل پېرل** (ganḍalperál) مص. مت. ګنډل، سکښل، په ستن او تار کار کول.

**ګنډلی**(ganḍaláy) ښځ.م. ګنډه، غوټه، پنډوکی، پنډوکی، ګټلی.

**ګنډنی** (ganḍanáy) ص.نر.م. لنډ او بې لستوڼو کميس، ګنډولی، ګنډی.

**ګنډوپړ** (ganḍupáṛ) نر.م. ترنه پرانيستنه، لړونږ، چل وتړ.

**ګنډون** (ganḍū́n) نر.م. ګندنه، ګنډل، پيوند.

**ګنډونکی** (ganḍū́nkay) فا. نر.م. خياط، ګنډونی، هغه چې کالي ګنډي، درزي.

**ګنډونی** (ganḍū́nay) فا. نر.م. ګنډونکی، خياط.

**ګنډه** (gánḍa) ښځ.م. غوټه، پنډوکی؛ ۲) ډډه، د پرتوګ ابېن ځای؛ ۳) د لرګي غوټه؛ ٤) مج. جادو.

**ګنډه ځر** (ganḍacár) نر.م. ګنډېری، ګنډېر، خرزهره، سم الحمار.

**ګنډه ګنډه** (gánḍagánḍa) ص. ګونځې ګونځې، ګونجي ګونجي، کالکوټي.

**ګنډه تل** (ganḍatál) نر.م. و ګ. ګندنه.

**ګنډه کول** (ganḍakawál) ښځ.م. غوټه کول.

**ګنډهېر** (ganḍhér) نر.م. ۱) ګنډېر، د زهرو په خبره برتريخ؛ ۲) مج. د زهرو، وژونکی.

**ګنډی** (ganḍáy) ص. نر.م. ۱) و ګ. ګنډولی؛ ۲) د دمري څلورمه برخه، ۳) د پخواني پيسي شپاړسمه برخه؛ ٤) د کوچنيانو لنډو لستوڼو والا کميس.

**ګنډۍ** (ganḍáy) ص. ښځ.م. د ورېښو يا پنبې جاکټ، کوچې، جمپر، د شپانه چپنه.

**ګنډياره** (ganḍyā́ra) ښځ.م. يو ډول نبات دی چې ګنډياله يې هم بولي.

**ګنډېر** (ganḍér) نر.م. و ګ. ګنډهېر.

**گنډېرخه** (ganḍercá) ښځ.م. څته مېره.
**گنډېرمري** (ganḍermaráy) ښځ.م. زهر مهره، ترياق، يو ډول مهره چې د زهرو اثر لېرې کوي.
**گنډېرن** (ganḍerə́n) نر.م. زهرلرونکی، هغه شی چې زهر لري.
**گنډېرۍ** (ganḍeráy) ښځ.ج. د سپين کرې گنې توته، ککيری، منتېرې، گنېرکه.
**گنډېرۍ** (ganḍeráy) نر.م. يوغنگلي او غرنی بوټی دی چې سره او سپين گلان کوي.
**گنر** (ganáṛ) ص. نر.م. زوړ او ډنگر غويی.
**گنس** (gans) ص. نر.م. گيچ، بې سده، بې هوښه.
**گنستوب** (ganstób) نر.م. بېهوښي، سرېدالي، واگنتوب، گنستيا، سرگرداني.
**گنسول** (gansawə́l) مص.مت ۱) بېهوښه کول، گېچول؛ ۲) سرگردان کول، پرېشانه کول.
**گنسېدل** (gansedə́l) مص.ل. ۱) بېهوښه کېدل، بې سده کېدل؛ ۲) پرېشانه کېدل.
**گنکي** (gankí) ص. نب. د کومې سختې ضربې له امله بېهوښې پيدا کېدل.
**گنگ** (gáng) نر.م. ۱) دکوزدي بلنه؛ ۲) ص.نر.م وارخطا، اوتر؛ ۳) نر.م. تهکس، هغه پيسې چې يو هندو به د ځان د ژغورنې لپاره يو پښتون ته ورکولې؛ ۲) يو ډول مرغۍ؛ ۳) مج. ختيځ.
**گنگان** (gangā́n) نر.ج. يو ډول بوټی دی چې د پانو دوره يې د کوچنيانو په مغانو کې اچول کېږي.
**گنگټ** (gangáṭ) نر.م. و.گ. گونگټ.
**گنگخر** (gangxár) نر.م. و.گ. گنده خر.
**گنگخړ** (gangxáṛ) نر.م (ج. گنگخړي) د سېلاب په مخکې واړه واړه لرگي.
**گنگر** (gangár) نر.م. د سنډا د ملا تير.
**گنگره** (gangrá) ښځ.م. کړاو، تکليف، زحمت.

**گنگري** (gangarí) ص. ښځ.م. تېښگه ختېه.
**گنگړ** (gangáṛ) نر.م. يو ډول گانه يا پسول.
**گنگس** (gangs) ص.نر.م. ۱) وارخطا، سرگردان؛ ۲) بې خوده، بېهوښه، بې سده.
**گنگستيا** (gangstyā́) ښځ.م. گنگستوب، گنگسي، بېهوشتيا، گيچې.
**گنگ سنگ** (gangsáng) ص.نر.م. گنگ منگ، غلی، چوپ، گونگ سونگ.
**گنگسونکی** (gangasawū́nkay) نر.م. بېهوشوونکی، بېهوښه کوونکی.
**گنگلو** (ganglū́) نر.م. تېپر، شلغم.
**گنگو** (gangū́) نر.م. ۱) زعفران؛ ۲) مج. زېړ، زېړونکی.
**گنگوچه** (gangučā́) ښځ.م. د انگورو وړی، د انگورو غونچه، گنگوری، وابنکی.
**گنگوری** (gangū́ray) نر.م. ډنډوری، د انگورو غوږشه، دکېلو وږی، وابنکی، د خرما وږی.
**گنگوړه** (gangūṛá) ښځ.م. گانگوړه، يو بوټی دی.
**گنگوړی** (gangū́ṛay) نر.م ۱) گانگوړی؛ ۲) ترتری توتوری، تتله؛ ۳) گنگوسی، گونگوسه.
**گنگوسه** (gangūsá) ښځ.م. ۱) آوازه، شهره، انگازه، ښکالو؛ ۲) افواه، د دروغو خبره خپرېدنه.
**گنگوسې** (gangūsé) ښځ.ج. و.گ. گنگوسه.
**گنگوماښام** (gangūmāṣā́m) نر.م. رڼا ماښام، ماښام چې پوره تياره نه وي، گونگوڼ ماښام.
**گنگي** (gangí) نر.ج. ۱) گنده گي، پليتوالی؛ ۲) خخله؛ ۳) د تنې مرداري.
**گنگېلا** (gangelā́) ښځ.م. (ج. گنگېلاوې) انگولا.
**گنگيله** (gangilá) ښځ.م. و.گ. انگوله.
**گننۍ** (gananáy) نر.م. وروکی شېدی رودونکی وری.

گنني (gananáy) مبغ.م.ج. د اوبو پچپه، د اوبو سوټه.

گنوار (ganwár) ص.نر.م. ۱) باندېچي، باندېڅې؛ ۲) مج. ساده کليوال سړی.

گنه^(۱) (guná) مبغ.م. نښه، گونه، نښان، علامت.

گنه^(۲) (gána) اد. ۱) باري، گني؛ ۲) مبغ.م. و.گ. گناه.

گنهار (ganhár) نر.م. گنهار، انگازه، گوپار.

گنه درو (ganadráw) نر.م. ۱) د رشقي او شوتلو لومړنی لو؛ ۲) گنه درب، نارسېدلی توت.

گنهر (ganahár) نر.م. يو د ول سابه دي.

گنهگار (ganahgár) نر.م. گني، نيشکر.

گنهگاره (gunahgára) مبغ.م. گناهگاره، جرمانه، توغم، جريمه، کفاره، د گناه معاوضه، ناغه.

گني (gáne) اد. نو، نو بيا، گوندي، گنه.

گنی (ganáy) نر.م. (ج. گني) نيشکر.

گنۍ (ganáy) مبغ.م.ج. د مچيو يا د نبرو گبين.

گڼ (gaṇ) نر.م. ۱) د ېر زيات، په شمېر زيات، گڼ گور، سره نښتي دي؛ ۲) گورم، پاده

گڼا^(۱) (gaṇá) مبغ.م. د گوڼ گوڼ اواز.

گڼا^(۲) (gaṇá) فا. نر.م. څوک چې په پوزه کې گڼ گڼ کوي، چې ژبه يې نښتلې، د پوزې د هوا په مرسته خبرې کوونکی.

گڼارى (gaṇáray) نر.م. په پوزه کې د خبرو آواز، د گنهبو آواز، د گوڼ گوڼ آواز.

گڼتوب (gaṇtób) نر.م. گڼتيا، گڼوالی، د ېروالی.

گڼ رنگی (gáṇrangay) نر.م. فصل رنگړی کونه، له فصل نه گڼ بوټي ايستنه، نري کول.

گڼږی (gaṇžáy) نر.م. گنگوسه.

گڼ شمېر (gáṇšmer) نر.م. گڼ، د ېر، زيات شمېر، زيات تعداد.

گڼ کپ (gaṇkáp) ص.نر.م. و.گ. گنډ کپ.

گڼ کوريز (gaṇkoríz) نر.م. هغه کلي، سيمه چې گڼ کورونه ولري، خانه هاى متراکم.

گڼکی (gaṇkáy) ص.نر.م. گڼ، د گڼ تصغير نوم، لږ گڼ.

گڼ گچه (gaṇgačá) مبغ.م. د انگور و ونې.

گڼ گڼ (gáṇgaṇ) نر.م. په پوزه کې خبرې کونه، گونهدل، بنگهدل.

گڼ گنی (gáṇgaṇy) ص.نر.م. غونی، په پوزه کې خبرې کوونکی، خنخونی، گوڼ گونی.

گڼ گور (gaṇgúr) ص.نر.م. و.گ. گور.

گڼ گونديز (gaṇgwandíz) نر.م. گڼ گوندي، د ېر گوندي، د ېر حزبي، څو گونديز.

گڼ گين (gaṇgín) ص.نر.م. د سپنهيو، سپنهين.

گڼل (gaṇál) مص.مت. ۱) قياس کول، خيال کول، گومان کول؛ ۲) شمېرل؛ ۳) منل، قبلول.

گڼل کېدل (gaṇalkedál) مص.ل. پوهېدل.

گڼ مېشتی (gaṇmeštay) ص.نر.م. گڼ استوگن، پرنفوس لکه ښار يا هېواد.

گڼ مېشتي (gaṇmeští) ص.مبغ.ج. گڼ استوگني، پرنفوسي، تراکم نفوس.

گڼني (gaṇanáy) نر.م. زيلانغ، زيلان، رحم.

گڼوالی (gaṇwálay) ص.نر.م. گڼتيا.

گڼ وگړی (gáṇwagəṛay) ص.نر.م. گڼ وگړني، پرنفوس، گڼ مېشتی.

گڼول^(۱) (gaṇawál) مص.مت. په خبرو راوستل، گرول، پوښتل.

گڼول^(۲) (gaṇawál) مص.مت. ۱) گورول؛ ۲) د ېرول زياتول.

گڼ ولسي (gaṇwulasí) ص.مبغ.ج. گڼ مليتي، څو مليتي، چند مليتي.

گڼون (ganūn) نر.م. شمېرل، شمارل، گڼول.
گڼونه (ganawána) ښځ.م. ۱) ډېرول، ګڼ ګورول؛ ۲) ګڼونه، په خبرو راوستنه.
گڼونی (ganūnay) فانر.م. شمېرونکی، محاسب.
گڼه (gána) ښځ.م. ۱) شماره، نمبر، شمېره، د اخبار یارسالې یا بل شي لمبر، جلد؛ ۲) الکه چې.
گڼهار (ganahār) نر.م. غونهار، ګڼهارى.
گڼه بوز (ganat ūz) نر.م. زرور، مضبوط او تکړه، په خبرو اترو کې تکړه او جرار.
گڼه خور (ganaxwár) نر.م. هغه خرڅاى یا ورشو چې واښه ډېر ولري.
گڼه گونه (ganagúna) ښځ.م. د خلکو زیاتوالى، کثرت، یا د خلکو ازدحام.
گڼه وهل (ganawahә́l) مص.مت. شماره وهل، نومره وهل، نمره زدن.
گڼ هېوادیز (ganhewādíz) نر.م. ګڼ هېوادي، څو هېوادي، چند کشوري.
گڼی (ganáy) نر.م. غوټى، په پوزه کې خبرې کوونکی.
گڼېدل(۱) (ganedә́l) مص.ل. ډېرېدل، زیاتېدل.
گڼېدل(۱) (ganedә́l) مص.ل. په پوزه کې خبرې کول، ګڼ ګڼ کول.
گڼېش (ganḗš) ص.نر.م. کمزوری او ضعیف سری، مانده سری.
گڼیه (ganyá) ښځ.م. ګانه، ګرو.
گڼیه وال (ganyawā́l) نر.م. ګروي دار.
گو (go) نر.م. ږو، سوګند، د ګواه مخفف، خدایږو.
گواتل (gwātә́l) مص.مت. تېپي کول، ژوبلول.
گواته (gawātá) ښځ.م. ډېرۍ، ډېرۍ، د څپیاکو ډېرۍ، ګوهاته.
گواتی (gowātáy) نر.م. بوم، ګونګ، یوه مرغه دی چې د شپې له خوا واره مرشان ښکار کوي.

گواخ (gwāx) نر.م. ۱) مرسته، ارخ، مدد، پېره؛ ۲) پخلا کونه.
گواخل (gwāxә́l) مص.مت. ۱) پخلا کول؛ ۲) مرسته کول، ....... کول.
گوار(۱) (gwār) نر.م. ۱) پاده، ګله، کسوهار؛ ۲) د مزاج مطابق؛ ۳) مج. خوندور؛ ٤) بخیل؛ ٥) بدشکل؛ ٦) پوچ، ګنده؛ ۷) یو ډول مالګه ده چې څاروي ته ورکول کېږي؛ ۸) سور، ګورا، پیرنګی؛ ۹) ډول، قسم.
گوار(۲) (gowā́r) ص. نر.م. ساده باده، بوله، جټ، بې تعلیمه، جاهل، شوده بوده.
گوارچي (gawārčī) ص. نر.م. پاده وان، ګله بان، غوبه، ګواري، شپونکی.
گواری (gawāráy) ښځ.م. بورى، د مزرو غولی چې د خاورو چلولو لپاره کارېږي.
گواښ (gwāṣ) نر.م. ۱) د جنګ نه جلا کونه؛ ۲) ثالثي، منصفي، منځګړتوب؛ ۳) درکه، داورنه، تهدید؛ ٤) جګړې ته راولاړېدنه.
گواښکېښ (gwāṣkéṣ) نر.م. جنګ وسوله، ژغورل، خلاصول، منځګړتوب.
گواښ گر (gwāṣgár) نر.م. و.ګ. ګواښ ګرندی.
گواښ گرندی (gwāṣgránday) ص. نر.م. دربیمګری، منځګری، ګواښ ګر، ګواښ ګری.
گواښل (gwāṣә́l) مص.مت. ۱) ژغورل، بچ ساتل؛ ۲) جنګ ته تیارول، راپارول.
گواښلیک (gwāṣlík) نر.م. اخطارلیک، اخطاریه.
گواښندوی (gwāṣandúy) نر.م. و.ګ. ګواښ ګرندی.
گواښنه (gwāṣána) ښځ.م (ج.ګواښنې) ګواښول، ګوتڅنډنه، اخطار.
گواښېدل (gwaṣedә́l) مصر.ل. ۱) تهدید کول، غوربدل؛ ۲) آماده کېدل، جنګ ته تیارېدل.

**ګواکې** (gwāké) اد. لکه چې، ګویا، دا چې، ګنې.
**ګوال** (gwāl) نر.م. د غـره یا غونډۍ د لمنې څمکه چې غوړنده وي.
**ګوالل** (gwālál) مص. مت. شهادت ورکول، ګواهي ورکول، ګواهي لودل.
**ګوانجه** (gawānjá) ښـځ.م. منداوو، غابنور، کـږ.
**ګواه** (gawāh) ص. نر.م. شاهد، ګواهي ورکوونکی، ثبوت ورکوونکی.
**ګواهل** (gawāhál) مص. مت. ګوالل.
**ګواهي** (gawāhí) ښځ.م. شهادت ورکونه، شاهدي.
**ګواهي لل** (gwāhilál) مص. مت. شهـادت ادا کول، ګواهي ورکول.
**ګوبا** (gobā́) ص. ښـځ.م. کم عقله، غـتـه او چاغـه ښځه، احمقه یا نادانه ښځه.
**ګوبری** (gubaráy) ص.نر.م. له ختې یا خاورې یا چونې او خاورې نه جوړ.
**ګوبلکه** (gubaláka) ښځ.م. ۱) یو ډول مرخېړی؛ ۲) پوکانی.
**ګوبه** (gubá) ښځ.م. کرکوره، یوه مرغۍ ده.
**ګـوبیړ** (gubíṛ) ص. نـر.م. ګـوباړ، بوډا، ډېر زوړ سړی، شیخ فاني.
**ګوپ** (gūp) نـر.م. ۱) د غـویې یا اوښ کـوپان؛ ۲) ګـوجـر؛ ۲) د سـرو زرو زنځیر؛ ۳) د سهیل ستوری، د منې ستوری.
**ګوپال** (gupāl) نر.م. یو ډول ګل دی.
**ګوپالا** (gupālā́) ص. نر.م. تیارخور، وریـا غتې غتې مړی اخیستونکی.
**ګوپان** (gopān) نـر.م. د ګوپ ستـوری، د سـهیل ستوری، د منې ستوري.
**ګوپر** (gupúr) نر.م. وګ. ګوار.
**ګوپژن** (gupžán) نر.م. تبدیلي، تغییر، بدلون.

**ګوپړی** (gupṛáy) نر.م. د ګوډي، ژې یا مشک د غرمنې پیوند.
**ګوپله** (guplá) ښـځ.م. ۱) مېرې، نونې، نسوالـه؛ ۲) وریم، د خولې خوسا بوی.
**ګوپی** (gupáy) نر.م. وګ. ګلپی.
**ګوت** (gut) نر.م. ګوتمې، ګـوته، ګوتمه، شلې، یو ډول ښځینه ګانه چې ښځې یې په ګوته کوي.
**ګوتار** (gūtár) ص.نر.م. کوتار، نښتی، اخته، ککړ، لړلی، بوخت، مبتلا.
**ګوتاوه** (gutāwá) ښځ.م. بوتاوه، ښاریرته د شوتلو او بوسو دروشته.
**ګـوتځندنه** (gwatčandána) ښـځ.م. ګـوابښ، ګوابنه، توربرېښ، غابښ چیچې.
**ګوتخند** (gwatxā́na) نر.م. د سپښتې یو ډول لوبه ده.
**ګوتره** (gutrá) ښـځ.م. یو بـوټی دی چې په اوبو کې شین کېږي او لوی ډنډر کوي.
**ګوترۍ** (gutráy) ښځ.م. ګـوترۍ، پتاق، ټباره، کاسه، د مچوغنې یا لینډي کاسه.
**ګوتکې** (gwatkáy) ښځ.م. ګوته، ګوتي.
**ګوت ګوت** (gwátgwát) نر.م. پیچ پیچ، یو ډول لـوبه ده چې د منځنۍ ګوتې په ښکاره کـولـو ترسره کېږي.
**ګوتګوتی** (gwatgūtáy) ص.نر.م. بدنام، سپک شوی، شاغو شوی.
**ګوتلکه** (gwatláka) ښځ.م. وګ. ګتلکه.
**ګوتلکی** (gwatlákay) نـر.م. رسوا، د ژبو په سر، په خولو کې، انګشت نما.
**ګوتګی** (gwatkáy) نـر.م. خچه ګـوتـه، ووړکې ګوته.
**ګـوتمنډی** (gwatmandáy) نـر.م. ۱) ګـوتـو ورکونه؛ ۲) عیب لټونه، اعتراض، الزام.

**گوتمو** (gwatmū́) ښځ.م. ۱) گوتمیر، گوتماغو، د گنډلو یوه آله ده چې ښځې یې په گوته کوي؛ ۲) د تنې سوری، کاج.

**گوتمه** (gwatmá) ښځ.م (ج. گوتمې) وگ. گوتمې.

**گوتمی** (gwatmáy) ښځ.م. ج. گوته، گوتمه، یوه گانه ده چې په گوته کې اچول کېږي.

**گوتنیونه** (gwatniwə́na) ښځ.م. گوتنیوی، غندنه، نیوکه، تنقید.

**گوتنیوی** (gwatniwáy) نر.م. وگ. گوتنیونه.

**گوتوړي** (gwatūṛí) نر.ج. دستانې، لاس پیلې، گوتمې، هغه دستانې چې د باز یا د باښې په لاس کېنولو پر وخت په لاس کېږي.

**گوتول** (gwatawə́l) مص. مت. ۱) گوتې ورکول؛ ۲) عیب لټول، اعتراض کول؛ ۳) الزام لگول.

**گوته** (gwáta) ښځ.م ۱) د لاس یا پښو گوته؛ ۲) یوه پښتني گانه چې په گوته کېږي؛ ۳) یوه لوبه ده.

**گوته په خوله** (gwátapəxulá) ص. ښځ.م. گوته په غاښ، حیران دریان، حق حیران.

**گوتلکه** (gwatláka) ښځ.م. ۱) پشوړه، گلکه، هغه جنې چې په بدو کې ورکول کېږي؛ ۲) په نښه کول.

**گوتی** (gū́tay) نر.م. ج. د ښکاري توپک د دارو وزن او اندازه.

**گوټ(۱)** (gwaṭ) نر.م. کونج، زاویه، گوښه.

**گوټ(۲)** (guṭ) نر.م. ۱) غرپ؛ ۲) د کوژدې یو رسم چې د جنې ورکولو اقرار په کې کېږي او د هلک خپلوانو ته شربت ورکول کېږي؛ ۳) د جولاگانو یوه آله؛ ۲) د سطرنج دانه؛ ۳) غبي او تنبل.

**گوټ(۳)** (goṭ) ص.نر.م. (مونثه بڼه یې گوټه) پخ ذهنه. تنبل. کم استعداده، چې سبق یې زر نه زده کېږي.

**گوټ پېړ** (gwaṭpéṛ) نر.م. گوټ پېړی، د لارې کوږوالی یا کږلېچ.

**گوټ پېړه** (gwaṭpéṛa) ښځ.م. تاوراتاو، گوټ پېچومی.

**گوټخونه** (gwaṭxū́na) ښځ.م. کوټنۍ، کوټگۍ پسخانه.

**گوټ غاړی** (gwaṭǧāṛáy) ص. نر.م. گوټ ناستی، هغه څوک چې له خلکو نه گوښه ناست وي.

**گوټک** (guṭák) نر.م. ۱) د جرثقیل او نورو څرخ؛ ۲) وگ. گوټکه(۱).

**گوټکه(۱)** (guṭka) ښځ.م. د تار گوټ یا کلوله.

**گوټکه(۲)** (gwaṭáka) ښځ.م. سپما، پس انداز.

**گوټ گورت** (gwaṭgurát) نر.م. د کوژدې یو رسم دی چې هلک ته په کې نکریزې پورې کېږي.

**گوټل** (guṭə́l) مص.مت. غرپ کول، په گوټ گوټ څښل.

**گوټله** (guṭlá) ښځ.م. ۱) د توپک گوټله، د ناوه یې توپک لټ یا گېټ؛ ۲) د تار گوټ یا کلوله.

**گوټلی** (guṭláy) ښځ.م. د کوچنیانو لته یې چوشک چې غوړې، شرینې او ... پکې ورکول کېږي.

**گوټ مېچ** (gwaṭméč) نر.م. د گوټ (زاویې) د مېچ آله، زاویه سنج.

**گوټ ناسته** (gwaṭnā́sta) ص. ښځ.م. گوښه ناستې، اعتکاف، گوښه گیرې.

**گوټناستی** (gwaṭnā́stay) ص.نر.م. گوټناست، گوښه یې، گوشه نشین.

**گوټن** (gwaṭán) نر.م. گوټین، گوټېز، زاویه لرونکی، گوشه دار.

**گوټوالی** (goṭwā́lay) نر.م. نالایق توب، پخ ذهني، تنبلي، کم استعدادي.

**گوټول** (guṭawə́l) مص. مت. غبي کول، نالایقه کول، پخ ذهنه کول.

**ګوټه** (guṭá) ښځ.م. ۱) د سطرنج دانه؛ ۲) یادونه، حفظ کونه.
**ګوټه ګن** (guṭagán) نر.م. دوبندی، په سر ک یا دره کې د ننوتو لاره.
**ګوټي** (guṭí) ښځ.م. ګوټلی، یو تریخ بوټی دی چې په یوناني درملنه کې هم کاریږي.
**ګوټی** (gwaṭáy) نر.م. ګونیا، کچه، یوه آله ده چې معماران وریاندې د میزان کارونه برابروي.
**ګوټی** (guṭáy) ښځ.م.ج. د سطرنج تخته.
**ګوټېدل** (goṭedə́l) مص. ل. غبي کېدل.
**ګوټین** (gwaṭín) ص. نر.م. ګوټ لرونکی، زاویه لرونکی.
**ګوجر** (gujár) نر.م ۱) یوه طایفه چې د غوا - مېښو ساتلو او پیو خرڅولو کار وبار کوي؛ ۲) د یو قوم نوم دی، ژبه یې ګوجرو یا ګجراتي بلل کېږي.
**ګوجرکی** (gugarkáy) نر.م. د ملا د تیر مهره .
**ګوجرو** (gujrú) ښځ.م. د ګوجر قوم ژبه، ګجراتي ژبه.
**ګوجک** (guják) نر.م. پتیره، د خمیره ضد.
**ګوجکه** (gujáka) ښځ.م. یو ډول سور رنګی وړه حشره ده، د غره پیشی، حلزون.
**ګوجی** (gūjáy) نر.م. ۱) ګوډر، شاپېتی، صدف، یو بحري لعاب داره حیوان؛ ۲) د سترګې ګل؛ ۳) کونجکه، خرمهره؛ ٤) خول، پوستکی.
**ګوجي** (gují) نر.ج. هغه یې چې شلومبې په کې واچول شي او سمدلاسه ماسته جوړ کړی شي.
**ګوچی** (gučáy) ښځ.م.ج. لپانکی، سمتی، اد ک، یو ډول لوبه ده، لشپا ک بازي.
**ګوڅ موڅی** (guǰmuǰáy) نر.م. ګخموزی، ګونس، غلی، هغه څوک چې د بل خبري خبري نه کوي.
**ګوڅن** (guǰə́n) نر.م. ګوزان، ګوزن، فالج، د بدن د رچېدو مرض.

**ګوڅری** (gucṛáy) نر.م. پنه، ګاولی، کېپی، کوڅره، موچنه.
**ګودا** (gudā́) ښځ.م. ګوده، زړی، زنی، مغز، د میوې یا تخم منځ برخه.
**ګوداړه** (gudāṛá) ښځ.م. ګوسره، په ورمېږ وهنه.
**ګودام** (gudā́m) نر.م. ګدام، ډیپو، زېرمه تون، د غلو دانو او نورو شیانو د زېرمه کولو ځای.
**ګودان** (gudā́n) نر.م. چرچوبی، چارچوبی.
**ګودانه** (gudāna) ښځ.م. ناوه، پرناله.
**ګودر** (gudár) نر.م. (ج. ګودرونه، ګودرې) ۱) له سیند نه د پورې وتو لاره؛ ۲) د سیند، چینې، کاریز یا ځاه هغه ځای چې ښځې ترې اوبه راوړي؛ ۳) لاره، رو.
**ګودره** (gudára) ښځ.م. لاړی، برګه، ډاګه، دستک.
**ګوډړ** (guḍáṛ) نر.م. ۱) تهوکی، رخت، زړه توته؛ ۲) ص. نر.م. زوړ او بېوړا ځاروی؛ ۳) زوړ او بېکاره؛ ٤) نر.م. صدف سیپی؛ ۵) د کاغذ یا توکر توته، خرڅوری، زړه لته، لیتاړه.
**ګوډړوالا** (gudaṛwālā́) فا. نر.م. کباړي، زوړ پلوری، کهنه فروش.
**ګوډړه** (gudáṛa) ښځ.م. ګادړه، زړه او ډنګره ښځه.
**ګوډړی** (gudaṛáy) ص. ښځ.م.ج. کند، د ملنګانو ګنډ، زوړ او پیوندي څادر.
**ګوډړی ګوډړی** (gudṛáygudṛáy) ص. نر.م. زړې زړې، توټې توټې، میده میده.
**ګوده**[۱] (gudá) ښځ.م. ۱) د مال د ترلو کوته؛ ۲) هغه کوټه چې د اوسېدو وړ نه وي، ګاوخونه.
**ګوده**[۲] (gwáda) ص. نر.م. ګوډ.
**ګوډ** (guḍ) نر.م. ۱) اللون، خښتاوه، ګوړ ؛ ۲) د تار ګوټ، د تار غوټه؛ ۳) د نهر یا ویالې د اوبو د خېژولو لپاره د لرګیو او خاشاکو ترل شوی بند.

**ګوډا**(۱) (gwuḍā́) ص. نر.م. ګوډ، په پښه معيوب، لنګ.

**ګوډا**(۲) (guḍā́) نر.م. ۱) ګوډۍ، پښنګ، باد پوړا؛ ۲) نانځکه، ګوډۍ، نارکۍ؛ ۲) هغه سړی چې د بل په اشاره کار کوي.

**ګوډاګی** (guḍāgáy) نر.م. ۱) نانځکه، ناوکۍ؛ ۲) ص. لاس پوڅی، د بل لاس آله.

**ګوډانه** (guḍānā́) ښځ.م. ۱) ګوډۍ؛ ۲) جېب، د نخرګ جېب؛ ۳) يو ډول کڅوړه ده چې د ننه په خيمو کې يې ګنډي؛ ٤) لوډچکی، وړوکی بوجی؛ ٥) د مېوو تولولو څادر.

**ګوډباڼی** (guḍbā́ṇay) نر.م. پېتواری، هغه نوکر چې د سفر يا ښکار په وخت کې چا سره وي او د هغه د مال و اسباب ساتنه کوي.

**ګوډبه** (guḍbá) نر.م. هغه کاريز کنستونکی چې د کاريز پر کوهي باندې کار کوي.

**ګوډچکی** (guḍčákay) نر.م. ګوډانه، ګوډکی، ګوډچکه، وړوکی انبان.

**ګوډری** (guḍáray) نر.م. د ګوډي يا غرکې پنبه.

**ګوډکی** (gūḍakáy) نر.م. وړوکی ګوډی، کوچنۍ ژی.

**ګوډل** (guḍál) نر.م. غوجل، د څارويو تړلو ځای.

**ګوډلاسی** (gwaḍlā́say) نر.م. معذوره، يو لاسی.

**ګوډمار** (guḍmā́r) فا نر.م. ګورکوونکی، ګوډ يمار، للون والا.

**ګوډوالی** (gwaḍwā́lay) نر.م. ګوډتوب.

**ګوډول** (guḍawál) مص. مت. د کروندې ځمکه په رمبي يا تېسکوري نرمول، فصل صفا کول.

**ګوډوی** (gwaḍwáy) نر.م. ګډوې، ګډوه، د شرابو لوښی.

**ګوډه**(۱) (guḍā́) ښځ.م. ۱) ګونته، په ادب کېناستنه؛ ۲) خبر کېدنه، متوجه کېدنه.

**ګوډه بلی** (guḍabálay) نر.م. موش پرانګ، نولی، طرپاندی، خرپاندی.

**ګوډی**(۱) (gúḍay) نر.م. ۱) هغه څرمنی شی چې دانې، غوړي او نور پکې اچوي؛ ۲) د غرکې لاستی؛ ۳) د جوارو شېښی.

**ګوډی**(۲) (gwaḍáy) ص.نر.م. ۱) ګوډ، په يوه پښه ګوډ؛ ۲) د څارويو يوه ناروغي؛ ۳) د جوارو بوټي يو ډول چينجی؛ ٤) د بوسو حوسی، ډډ.

**ګوډی**(۳) (gúḍay) نر.م. د للون، خېشاوې يا ګوړ کوچنی لوړ.

**ګوډي** (goḍí) ښځ.م. ګوډيګر، خېشاوه کوونکی.

**ګوډ ياري** (gūḍyārí) نر.ج. د غرکې څلور لاستي چې په هغو سره په خرک کې ځوړندېږي.

**ګوډ ياری** (goḍyāráy) ښځ.م. چاګله، د اوبو ورکوټې ژی، مشکوله.

**ګوډيال** (guḍyā́l) نر.م. د بوټو ايستلو تېسکوره.

**ګوډی چرګ** (gwaḍayčárg) نر.م. ملاچرګک، هُدهُد.

**ګوډی خادمی** (guḍayxādámay) ښځ.م. يو ډول سمساره، د سمسارې په څېر يوه خزنده.

**ګوډيکه** (gūḍyáka) ښځ.م. ۱) وړکی ګوډی؛ ۲) دانګوره، د ګوډ شلو دانګوري؛ ۳) د تار ريشلو د څرخي پايه.

**ګوډېدل** (gwaḍedál) مص. ل. ګوډکېدل، په پښه معيوبېدل.

**ګوډيکه**(۱) (gwaḍyáka) ښځ.م. د ګوډانو د تخرګ لرګی.

**ګوډيکه**(۲) (gūḍika) ښځ.م. ۱) وړوکې ناوه کی؛ ۲) د سپنسيو د تاوولو پايه.

**ګوډيه** (gūḍyá) ښځ.م. د تړولو شرومبو د غرکې د لاستي د تړلو تسمه.

**گور**[1] (gūr) نر.م. ۱) گن، د ک او خپودرو، د ب دوب: ۲) گورم، پاده.

**گور**[2] (gor) نر.م. ۱) هدیستون، قبر، مزار: ۲) اور لمانځونکی، گبر: ۳) ص.نر.م. برابر، سیال، ثاني، جوړه، ساری.

**گوراڅه** (goráca) نر.م. گېډی، کند، گنغ، گوراڅه، هغه لباس چې ډېر پیوندونه ولري.

**گوراډی** (gurādáy) ښځ.م. ناولي، بدشکله، پرواره، پوهاره.

**گوراری** (guráray) نر.م. غرغر کونه، گوربدنه، قهر، غوسه.

**گوراگور** (gorāgór) ص.نر.م. تېز، توند، چټک.

**گوربت** (gorbát) نر.م. (ج. گوربتان) عقاب، شاهین.

**گوربتگوټی** (gorbatgóṭay) ص.نر.م. د گوربت بچی، د عقاب بچی.

**گوربتوزمه** (gorbatwázma) ص. نر.م. د گوربت غوندې، د گوربت په څېر.

**گوربته** (gorbatá) ښځ.م. عقابه، شاهینه.

**گوربند** (gorbánd) نر.م. د اوښ یا غوايي پېش بند.

**گورت** (gwrát) نر.م. ۱) د گوتو ترمنځ فاصله: ۲) د مسواکي او گتې گوتې ترمنځ واټن.

**گورتوب**[1] (gurtób) نر.م. گوروالي، گن توب، گنوالي، گورتیا.

**گورتوب**[2] (gortóh) نر.م. مقابله، همسري، مساوي توب، گورتیا.

**گورتی** (gwaratáy) نر.م. هغه شی چې د شهادت او غټې گوتې ترمنځ ځای نیسي.

**گورتی** (gurṭáy) نر.م. گوتمه، گوتمی، گرنی.

**گورجه** (gūrjá) ښځ.م. سره الوچه.

**گورجی** (gūrjáy) ښځ.م.ج. یو ډول پخوانی ښځینه پنې.

**گورجی سپی** (gūjay spáy) ص. نر.م. یو ډول ښکاري سپی.

**گورڅه** (gūrcá) ښځ.م. (ج. گورڅې) بارخسو، غمبوری، اننگی، غومبوری، بغون، لغون.

**گورخر** (goraxár) نر.م. گوراخر، گورزی، غیره، غیره، یو ځنگلي خر چې غوښه یې حلاله ده.

**گورزی** (gorzáy) نر.م. ۱) هغه کوچنی چې په قبر کې له مړي موره پیدا شي: ۲) گورخر.

**گورستان** (goristán) نر.م. قبرستان، هدیره، مقبره، د مړو ښخولو ځای.

**گورسنگ** (gawarsáng) نر.م. یو ډول توره کلک تیږه ده چې د ژرندې میل ورباندې څرخي.

**گورک** (gorák) نر.م. گوارچي، گواره ساتونکی.

**گورکښ** (gorkáṣ) نر.م. قبرکنستونکی، قبرکن.

**گورکښه** (gorkáṣa) ښځ.م. گورگتې، بغسه، غسه، یو حیوان دی چې مړي له قبر نه وباسي.

**گورکن** (gorkán) ص. نر.م. و گ. گورکښ.

**گورگابی** (gūrgábay) نر.م. یو ډول زوړ بوټ.

**گورگتې** (gorgaṭáy) ښځ.م. و گ. گورکښه.

**گورگرندی** (gorgránday) نر.م. قبرکن، هغه ځوک چې قبر کنستل یې کسب وي.

**گورگور** (gúrgur) نر.م. غرغر، گوربدنه، گرومبدنه، له قهر نه گوربدنه یا غربدنه.

**گورگوره** (gwargūra) ښځ.م. یوه غرنۍ اغزنه ونه ده چې توري وږې خوږې دانې لري.

**گورلټی** (gorlaṭáy) ښځ.م.ج. گورکښ، غسی، هغه حیوان چې گور لټوي او مړي ترې راباسي.

**گورلڅ** (gūrláć) ص. نر.م. تندرست، چاغ، سور و سپین، غټ پټ.

**گورم** (gūrám) نر.م. ۱) پاده، گله؛ ۲) لسوبه ډله، لوی جمعیت.

**گورمټ** (gūrmáṭ) نر.م. گرمټ، سوک، موک، گورموټ.

**گورمکی** (gūrmakáy) ښځ.م.ج. یو ډول چرگه، بستکی چرگه.

**گورمل** (gūrmál) مص.مت. ۱) سرسري او گونځې گونځې گنډل؛ ۲) ص.نر.م. غوسه ناک، بړچن، بروس، غورځنگ کوونکی.

**گورملتوب** (gūrmaltób) نر.م. بروس والی، کاږساوی، گروټ والی، خپگان، غوسه، قهر.

**گورموغ** (gurmúγ) ص.نر.م. غصه ناک، قهرجن.

**گورموز** (gurmúz) ص.نر.م. و گ. گورموغ.

**گورنده** (gūránda) ښځ.م. کوندغال، کندغالي، کنده، ډوغل.

**گورنډ** (goránḍ) نر.م. تنگ تروش، تیاره کور، زوړ، ژور قبر.

**گورنډه** (gūránḍa) ښځ.م. ۱) وروکی او تنگ کور؛ ۲) زوړ قبر؛ ۳) غوجله.

**گورنر** (gawarnár) ص. نر.م. ۱) د یوې صوبې حاکم؛ ۲) ماشین ته د گیس رسولو پرزه.

**گورنگی** (gūrangáy) ص. نر.م. سور رنگ لرونکی آس.

**گورو** (gurū́) نر.م. ۱) پیر، مرشد؛ ۲) د علم و فن استاذ؛ ۳) مج. شریر، مفسد؛ ٤) هوښیار.

**گوروالی** (gūrwā́lay) نر.م. د گوارې ساتلو کار، گله وان، پاده واني، گاهو توب، شپون توب.

**گوروان** (gūrwā́n) ص. نر.م. پاده وان، گله وان.

**گوروانکه** (gūrwānáka) ښځ.م. شامتوره.

**گورول** (gūrawə́l) مص.مت. ۱) گږ او گور کول؛ ۲) قهر ورته کول، په غوسه او غضب ورته

طبري کول.

**گوره** (gūrá) ښځ.م. ۱) هغه لوی سوری یا ډول چې د سپند د لاري په غاړه ځمکه کې شوی وي؛ ۲) نر.م. تجارتي نخښه؛ ۳) ښځ.م. سپنخری، سپنخول، د اوسپني بوره.

**گورهار** (gurhā́r) نر.م. ۱) د زلزلي آواز؛ ۲) په پرله پسې توگه غورپش کول.

**گوره گل** (guragə́l) نر.م. غوره گل، وچه لنده خته.

**گورهند** (gūrhánd) نر.م. گورنده، گورهنده.

**گورهنډه** (gūrhánḍa) ښځ.م. تنگ و تیاره غار، ډوغل، گورنډه، لویه کنده؛ ۲) مج. قبر.

**گوریز** (gurayíz) نر.م. یو ډول گلېتې توپک.

**گوري** (gurí) ښځ.م. تکي برگي، په لوبو کې دوکه.

**گوری** (gawráy) ښځ.م.ج. گور، دلده، ورغستلی، ارغستي، ارغستلي.

**گوری** (gūráy) نر.م. گوره، د اوسپني میده گي، وسپنخری.

**گوریجن** (gūrejān) فا.نر.م. دوکه باز، چلي.

**گوریدل** (gūredə́l) مص.ل. ۱) گږ کېدل، گوریدنه؛ ۲) گنېدل، ځان سره گړ گړ کول، غړېدل.

**گوري سمسه** (gūrisamsá) ښځ.م. ۱) کوبل، د یو مارغه نوم؛ ۲) توراني، تارانکه، کویله.

**گوریله** (gūrilá) ښځ.م. گوریلا؛ ۱) گوریلایي، چریکي پوځ؛ ۲) دشادو یو ډول.

**گوریمار** (gūrimā́r) نر.م. دوکه باز، چلباز.

**گوری موری** (gū́raymū́ray) نر.م. ناڅاپه، نابېره، ناگهان، سمدلاسه.

**گوړ** (gūṛ) نر.م. ۱) وگ. گوره؛ ۲) وگ. گوډ.

**گوړ** (goṛ) نر.م. په گېډه کې د باد آواز.

**گوړا** (guṛā́) ښځ.م. ۱) یوه خره ونه ده؛ ۲) یو ډول ماله ده چې پتی پرې اواروي.

**گورابی** (*gūṛābáy*) ښځ.م. ۱) هغه اوبه چې له یو سوري نه راوځي او د ځروبي شکل جوړوي؛ ۲) د کوچنیانو یو ډول لوبه ده.

**گوراخر** (*goṛāxár*) نر.م. اوښغویی، گورخر.

**گوراکو** (*gūṛākū*) نر.م. ۱) د غومبسو ځاله، د مچیو ځاله؛ ۲) یو ډول خوږ تماکو.

**گوربانی** (*gūṛbā́nay*) نر.م. ۱) توښه، توشه، ځوری، بانی؛ زادراه؛ ۲) ص. توښه وړونکی.

**گورباهی** (*gūṛbā́hay*) نر.م. و.گ. گورابی.

**گوربی** (*gūṛbáy*) نر.م. گروبی، گرداو، چورلندی، خارخوری، ځرخاو، گرځنی.

**گوردانې** (*gūṛdā́ne*) نر.ج. د غنمو وریته چې گوزه ورسره گډه وي.

**گوردم** (*gwaṛdám*) نر.م. غټ چارتراش.

**گورکه** (*guṛká*) ښځ.م. د تارو کلوله.

**گورماچ** (*gūṛmā́č*) نر.م. تاو شوې کولمه.

**گورمار** (*gwaṛmā́r*) فا.نر.م. گورېز، گورساز، گوري، هغه چې گوره پخوي.

**گورمکی** (*gūṛmakáy*) ښځ.م.ج. یو ډول چرگه ده.

**گورنج**[1] (*guṛánj*) نر.م. غولغولی، چورلندی، گرداب، زغومی.

**گورنج**[2] (*gwaṛanj*) نر.م. سون، ورورورو غېږ، پسېدل، غلې څه ویل.

**گورو** (*guṛū́*) نر.م. ډېر خوږ، ډېر ښه سړی.

**گوروبی** (*goṛūbáy*) نر.م. ۱) د گورې شربت؛ ۲) ډېر خوږ شی.

**گوره**[1] (*gwaṛá*) ښځ.م. د گنې د شربت نه جوړه شوې خوږه ماده.

**گوره**[2] (*guṛá*) ښځ.م. تانگه.

**گورکی** (*gwaṛakáy*) ښځ.م. د گور گورې په څېر د بوې غرنۍ ونې مېوه.

**گوري** (*goṛí*) ص.نر.م. گورېز، گورساز، په گانۍ کې د گورې پخولو ماهر سړی.

**گوړی** (*gūṛáy*) ښځ.م ۱) مالوچ، پاغونده؛ ۲) د تارو کلوله؛ ۳) د جوارو پولی؛ ٤) د ونې یا نباتاتو شوده؛ ٥) د ځوز د گل خوږه ماده ده چې ترنجبین ترې لاس ته راځي؛ ٦) نری ازغی چې د حیواناتو د خوراک وړ وي؛ ۷) یو ډول بوټی دی.

**گوړي** (*gawṛí*) ص. نر.م. یو ډول غنم چې غټې او اوږدې داني او وږی لري.

**گوز** (*gawz*) نر.م. ښایست، ښکلا.

**گوزار** (*gozā́r*) نر.م. غوزار، درب، ډب، وار. وهل.

**گوزارل** (*gozārә́l*) مص.مت. ۱) ویشتل، غورځول، گزارول؛ ۲) ادا کول، ترسره کول.

**گوزارول** (*guzārawә́l*) مص.مت. ۱) غوزارول؛ ۲) ځملول، پر ځمکه راویشتل.

**گوزاره** (*guzārá*) ښځ.م ۱) وخت تېرونه، وخت اړونه، ساعت تېرونه؛ ۲) مج. زغم، حوصله.

**گوزاري** (*gozārí*) نر.م. تیک، د غوز یا بلوړو په لوبه کې غټ غوز.

**گوزارېدل** (*guzāredә́l*) مص.ل. غوزارېدل، پرېوتل، ارتاوېدل.

**گوزاریز** (*guzāríz*) نر.م. گوزاروالا، ضربې والا، ضربتي.

**گوزران** (*guzrā́n*) نر.م. و.گ. گوزاره.

**گوزلېکه** (*gozléka*) ښځ.م. د یو شي ډېره لږه برخه.

**گوزموز** (*gozmū́z*) ص. نر.م. ۱) الیوې خبرې کوونکی؛ ۲) گوزموزی، غلی پلی.

**گوزڼ** (*guzә́ṇ*) نر.م. رپ رپی، گوزنډ، فالج، د بدن د لړزېدو یا رچېدو مرض.

**گوزڼ وهلی** (*gozaṇwahә́lay*) فا.نر.م. گوزنډ وهلی، د فالج په مرض اخته.

**گوروی** (gūẓwáy) نر.م. قلبه یي، د قلبې غوایی.

**گوږی** (gūẓáy) ښځ.م. تاو شوي ستني.

**گوسره** (gosṛá) ښځ.م. مضبوطه او سخته څپیړه.

**گوسندل** (gūsandə́l) مص. مت. ۱) ناګوماڼه کول، غافلول؛ ۲) ځان ناګاره کول، گوسنډل.

**گوسپه** (gusə́pa) ښځ.م. ګوسن، ګوسره، یو ډول غټ او پنډ ماره

**گوسه** (gawsá) ښځ.م. ۱) سنګره، کرکنډه، غټ کانی؛ ۲) یو ډول غرني سابه دي.

**گوسه** (gosá) ښځ.م. تپله، ډیکه، دیکه، تپل وهل، پوري وهل.

**گوسی** (gusáy) نر.ج. یو ډول غرني سابه دي.

**گوش** (goš) نر.م. ۱) یو ډول توره او غوړه ګیاه ده؛ ۲) د جنګ جګړې فیصله، روغه جوړه.

**گوشار** (gošā́r) نر.م. صحرائی غوایی یا غوایه.

**گوشپال** (gošpā́l) نر.م. د میږي مار، یو ډول خطرناک صحرایي مار.

**گوش خوره** (gušxorá) ښځ.م. د نوکانو د لاندېني پوستکي پورته کېده، د اوریو غوښه خوړل کېده.

**گوشواره** (gošwārá) ښځ.م. (ج. گوشوارې) د حساب کتاب لنډیز، میزان، توتل.

**گوشي** (goší) ښځ. نر.م. د رمو ښاروبو محصول.

**گوښواله** (goṣwā́la) ښځ.م. ګوښه والی، ځانله والی، تجرید، انزوا.

**گوښه** (goṣá) ښځ.م. ۱) ګوټ، کونج، کنج، کناره؛ ۲) خلوت، یوازې؛ ۳) کوټه، حجره، خونه.

**گوښه ناست** (goṣánā́st) ص. نر.م. په ګوټ کې ناست، ګوټ ناستی، ځانله ناست.

**گوښی** (gū́ṣay) ص. نر.م. یوازې، تنها، ځانله.

**گوښیځ** (goṣíǰ) نر.م. ۱) تاخچه، تاقچه، تاق؛ ۲) محراب، مهراب، تاخوری.

**گوښېدل** (gūṣedə́l) مص. ل. ګوښې کېدل، یوازې کېدل، یوازېتوب، ځانله پاتې کېدل.

**گوښېدلی** (gūṣedə́lay) نر.م. له دین نه ګرځېدلی، مرتد شوی.

**گوښی گوښی** (gū́ṣaygū́ṣay) ص. نر.م. ځانله ځانله، تنها تنها، یوازې یوازې.

**گوګ**[1] (gog) ص. نر.م. ۱) هغه څه چې منځ یې تش وي، ډډ، کاواک؛ ۲) بې وقوف، کم عقل، شوده؛ ۳) نر.م. غراسپی، غرسپی؛ ٤) تشی، د انسان او حیوان د پښتۍ او ډډوډې ترمنځ برخه.

**گوګا** (gogā́) ښځ.م. شور وځور، شور غوغا، ژړا انګولا.

**گوګار** (gugā́r) نر.م. لوبه سپینته، لوبه ببوی.

**گوګری** (gugráy) نر.م. له مشکنو، مریو، مرجانو یا سپینو زرو نه جوړ شوی ګل دی چې ښځې یې پر تندو ځوړندوي.

**گوګړ** (gogáṛ) نر.م. ۱) اورلګیت، ګوګرد؛ ۲) یو ډول غرنی ګل دی چې غرنی زنبق یې هم بولي.

**گوګړسازي** (gogaṛsāzí) ښځ.م. د ګوګړو کارخونه، د اورلګیتو فابریکه، د اورلګیتو کارخانه.

**گوګړغر** (gogaṛǧár) نر.م. آتشفشان غر، هغه غر چې چوي او اور پرې لګي.

**گوګره** (gogṛá) ص. ګینګری، وریته شوي یا نیني شوي نخود یا چڼې.

**گوګړی** (gogṛáy) ښځ.م.ج. پاختکه، کوړکوری، کوړکوړکه، ګوګوشتکه.

**گوګل**[1] (gogál) نر.م. ۱) د زړه صندوق، د زړه خونه، د سینې قفس؛ ۲) د سینې تر تتر د ننه خیزونه لکه زړه، ینه، توری، سږي او...

**گوګل**[2] (gugál) مص. مت. په منځ کې تشول، ګوګول، ډډول.

